

# ملي سرود

دا وطن افغانستـان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښـتـون او هــزاره وو
ورسـره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیــواد به تل ځلیږي
په سـینـه کې د آسـیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عــزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـان دی
د بـلـوڅـو د ازبکـو
د تـرکمنـو د تـاجکـو
پـامیـریـان، نورسـتانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنه آسـمان
لکــه زړه وي جـاویـدان
وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

## د کتاب ځانګړتیاوې

---


مضمون: تاریخ

مؤلفین: د تعلیمي نصاب د تاریخ زده کړو د څانګې علمي او مسلکي غړي

اډیټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډیټ د څانګې علمي او مسلکي غړي

ټولګی: لسم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

برېښنالیک پته: curriculum@moe.gov.af


---

## د پوهنې د وزیر پیغام

## اقرأ باسم ربک

د لوی او ښونکي خدایﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفیﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تآسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې: د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدایﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام ا و د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

**د پوهنې وزیر**

**دکتور محمد میرویس بلخي**

# لړلیک

**سرلیکونه** **مخونه**


لومړی څپرکی: آریایان ......... ۱
دڅپرکی موخې......... ۲
لومړی لوست: دآریانا تمدن......... ۳-۴
دویم لوست: ویدي مدنیت......... ۵-۷
دریم لوست: اوستایي مدنیت......... ۷-۸
څلورم لوست: د لرغوني افغانستان اساطیري تاریخ د پیشدادیانو واکمني ......... ۹-۱۰
پنځم لوست: د افغانستان اساطیری تاریخ د کیانیانو واکمني......... ۱۱-۱۲
شپږم لوست: د افغانستان اساطیري تاریخ داسپه واکمني ......... ۱۳-۱۴
اوم لوست: لرغوني افغانستان او هخامنشیان ......... ۱۵-۱۶
اتم لوست: لرغونی افغانستان او یونانیان ......... ۱۷-۲۰
نهم لوست: لرغونی افغانستان او موریایان ......... ۲۱-۲۲
دویم څپرکې: په افغانستان کې لومړني مدنیتونه ......... ۲۳
د څپرکي موخې: ......... ۲۴
لسم لوست: د یونان- باختریې خپلواک دولتونه......... ۲۵-۲۸
یوولسم لوست: د یونان- باختري مدنیت ځانگړتیاوې ......... ۲۹-۳۰
دولسم لوست: د یونان باختري پېر یو نامتو ښار (آی خانم)......... ۳۱-۳۲
دیارلسم لوست: ساکان ......... ۳۳-۳۴
څوارلسم لوست: د کوشانیانو امپراتوري......... ۳۵-۳۸
پنځلسم لوست: بگرام د کوشاني سترې امپراطورۍ پلازمینه......... ۳۹-۴۰
شپاړسم لوست: هډه د کوشاني امپراتورۍ کلتوري مرکز......... ۴۱-۴۲
اولسم لوست: بامیان د کوشاني امپراطورۍ عقیدتي مرکز ......... ۴۳-۴۶
اتلسم لوست: کیداریان یا کوچني کوشانیان ......... ۴۷-۴۸
نولسم لوست: د یفتلیانو امپراتوري ......... ۴۹-۵۲
شلم لوست: د اسلام د ظهور پر مهال د افغانستان وضع ......... ۵۳-۵۴
دریم څپرکی: د نړۍ لرغوني تمدنونه ......... ۵۵
د څپرکي موخې: ......... ۵۶

يو ويشتم لوست: د تمدن د رامنځ ته کيدو څرنګوالی اوځانګړنې.................. ۵۷-۵۸
دوه ويشتم لوست: د بين النهرين تمدن.................................. ۵۹-۶۲
درويشتم لوست: د بين النهرين تمدن او فرهنګ ................................ ۶۳-۶۴
څلورويشتم لوست: د مصرتمدن............................................ ۶۵-۶۸
پنځه ويشتم لوست: د مصرتمدن او فرهنګ ..................................... ۶۹-۷۲
شپږويشتم لوست: د فارس تمدن ................................................ ۷۳-۷۶
اوه يشتم لوست: د هند تمدن ..................................................... ۷۷-۸۰
اته ويشتم لوست: د چين تمدن.................................................... ۸۱-۸۴
نه ويشتم لوست: د يونان تمدن .................................................. ۸۵-۸۸
ديرشم لوست: د روم تمدن ........................................................ ۸۹-۹۲
يوديرشم لوست: د امريکا تمدنونه ................................................ ۹۳-۹۵
څلورم څپرکې : د اسلام تاريخ .................................................... ۹۶
د څپرکي موخې : ..................................................................... ۹۶
دوه ديرشم لوست : د اسلام د راڅرګنديدا پر مهال د نړۍ او د عربستان د ټاپو وزمې اوضاع ....... ۹۷-۹۸
درې ديرشم لوست: د حضرت محمد ﷺ ژوند له کوچنيوالي تر بعثته پورې............ ۹۹-۱۰۲
څلورديرشم لوست: د عقبې تړونونه (بيعت) ............................................. ۱۰۳-۱۰۶
پنځه ديرشم لوست: غزاګانې ......................................................... ۱۰۷-۱۱۲
شپږديرشم لوست: د حديبې سوله- بيعت الرضوان.......................................... ۱۱۳-۱۱۶
اوه ديرشم لوست: د مکې مکرمې فتح........................................................ ۱۱۷-۱۲۲
اته ديرشم لوست: ابوبکر صديق رضي الله عنه ............................................. ۱۲۳-۱۲۶
نه ديرشم لوست: حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ........................................... ۱۲۷-۱۲۸
څلوېښتم لوست: حضرت عثمان رضي الله عنه ................................................. ۱۲۹-۱۳۰
يوڅلوېښتم لوست: حضرت علی رضي الله عنه.................................................. ۱۳۱-۱۳۲
دوه څلوېښتم لوست: د خلفاې راشدينو وروښانه دورې ته لنډه کتنه ......... ۱۳۳-۱۳۴
درې څلوېښتم لوست: امويان ........................................................... ۱۳۵-۱۳۸
څلورڅلوېښتم لوست: د امويانو په دوره کې اقتصادي، اداري، کلتوري او پوځي وضعيت . ۱۳۹-۱۴۰
پنځه څلوېښتم لوست: عباسيان ............................................................ ۱۴۱-۱۴۴
شپږڅلوېښتم لوست: د عباسي دورې سياسي، اداري، کلتوري او اقتصادي حالت.. ۱۴۵- ۱۴۷

# لومړی څپرکی
# آریایان

دا څپرکی لاندې لوستونه لري:

- آریایان په افغانستان کې
- ویدي مدنیت
- اوستایي مدنیت
- د افغانستان اساطیري تاریخ
- هخامنشیان، یونایان او موریایان

# د څپرکي موخې

هیله کیږي چې د دې څپرکي په پای کې زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:

- د آریایي تمدن، ویدي او اوستایي مدنیت په اړه به معلومات ترلاسه کړي.
- د افغانستان اساطیري تاریخ باندې به پوه شي.
- د هخامنشیانو، یونانیانو او موریایانو په اړوند به معلومات تر لاسه کړي.
- ویدي او اوستایي مدنیت به سره پرتله کړای شي.
- د هخامنشیانو، یونانیانو او موریایانو په وخت کې به د افغانستان وضعیت تحلیل او مقایسه کړای شي.
- د هېواد له تاریخ سره به لیوالتیا پیداکړي.

# د آریانا تمدن

په دې لوست کې به په افغانستان کې د آریایانو د میشته کېدو او د هغوی د ژوند د څرنګوالي په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

پخوانۍ آریانا (نننی افغانستان) له میلاد څخه مخکې له دریو تر دوو زرو کاله مخکې د کرنې او اوبو لګولو ښه سیستم او له وګړو څخه ډک ښارونه درلودل. له میلاد څخه مخکې د لومړنیو زروکلونو په ترڅ کې لاسي صنایع، مسکوکات، طب، نجوم، ټوکرانو اوبدل او فلزکاري دود وه او د نړۍ په تمدنونو کې یې پنځم ځای ځان ته ځانګړی کړی و.

هغو کسانو، چې کابو دوه زره او پنځه سوه (۲۵۰۰) کاله پخوا تر میلاده په لرغوني افغانستان کې میشت شوي وو، ځان ته آرین ویل، آرین د ښو خویونو خاوندان او یا د اصیلو وګړو معنا لري. د لومړنیو ځایونو په اړه یې لا ډاډمن معلومات نشته، خو دا څرګنده شوې ده چې افغانستان ته آریایان د سیر دریا او آموسیند له شمالي لوري را تېر شوي او بلخ کې ځای پرځای شوي او هلته یې د آریایې پېر د لومړني مدنیت بنسټ ایښی او خپل ټاټوبی یې آریانا نومولی دی.

ویدي سرودونه د آریایانو په اړه تر ټولو لومړني او باوري اخځونه او منابع دي. په ویدي سرودونو کې د آریا یي قبیلو په اړه زیات معلومات شته. آریایانو د خپلو اوسېدو سیمو ته (آریانا ویجه) یا ( آریانا ورشو ) ویله. په ویدي سرودونو کې د الینا په نامه قبیله یاده شوې ده چې د اوسني الینګار اوسېدونکي وو. د بولان اوسېدونکي یې د بهالانه په نامه یادکړي دي.


د کډه کېدو پر مهال د آریایانو انځور

په ویدي سرودونو کې د هغو سیمو نومونه هم شته چې د آریایانو تر واک لاندې وو. د تاریخي جغرافیه پوهانو له خوا په اوسني افغانستان کې پېژندل شوي او په نښه شوي دي. د بېلګې په توګه، هریوا ( هرات )، هیراوتي (د هراوت) بلهیکه (بلخ) او نور یادولای شو. د سیمو پر نومونو سربېره په ریګویدا کې د سیندونو او غرونو نومونه هم

راغلي چې بېلگه يې د منجوان د غره نوم دی. دا غر د اوسني نورستان او بدخشان ترمنځ پروت دی.

آريايانو بلخ ته تر رسېدلو وړاندې کوچياني ژوند درلود. د سمرقند په تال برزو کې د ۱۹۳۹ زېږديز کال د څېړنو له مخې د يوه آريايي پاچا انځور چې د يوه خاورين لوښي پر مخ کښل شوی و، ترلاسه شو. د لرغونپوهانو په باور دا د آريايانو د لرغوني پاچا کيومرث انځور دی. په ويدي سرودونو کې د کوچيانو يو نامتو واکمن د کيومرث په نامه ياد شوی دی. په ويدي متنونو کې د پاچا يادونه دا په ډاگه کوي چې آريايانو په کوچياني ژوند کې هم د پاچاهۍ نظام درلود.

په بُخدي (بلخ) او د هغه په شاوخوا کې د آريايي وگړو زياتوالي هغوی دې ته اړ کړل چې د لويديځ، سهيل او سهيل ختيځ پر لور په ډله ييزه توگه د لېږد لړۍ (مهاجرت) پيل کړي. آريايانو په فارس کې د استوگنې وروسته د تمدن بنسټ کېښود چې د فارس د تمدن په نامه شهرت لري او د تمدنونو په مبحث کې به ور څخه يادونه وشي.

آريايانو يوه څانگه د لويديځ پر لور لومړی پارس (اوسنی ايران) او بيا د اوسنۍ ترکيې او تر هغه وړاندې بريدونه يې آن تر اروپايي هېوادونو پورې ورسېدل. بله ډله آريايان د سهيل ختيځ پرخوا يې مخه وکړه، هغوی بيا لومړی د لرغوني هند شمالي او بيا مرکزي سيمو ته ورسېدل. خو هغو آريايانو چې د هندوکش دواړو خواکې ميشت پاتې شول، په لرغوني افغانستان کې يې د دوو آريايي(ويدي او اوستايي) مدنيتونو بنسټونه يو په بل پسې کېښودل، چې په راتلونکو درسونو کې به يې ولولو.



## په ټولگي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو و وېشل شي، لومړۍ ډله دې د آريايانو د پيل او دويمه ډله دې د آريايانو د ورستي لېږد(مهاجرت) په اړه بحث وکړي او د خپلو استازو په وسيله دې نورو ته معلومات ورکړي.



## پوښتنې

۱ – آريايان کله افغانستان ته را غلل؟

۲ – آريايانو له بلخ څخه پر کومو لورو لېږد(مهاجرت) وکړ؟



## له ټولگي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د آريايانو په اړه نور معلومات راټول او په ټولگي کې دې خپلو ټولگيوالو ته و وايي.

# ویدي مدنیت

په دې لوست کې به د ویدي مدنیت پر مهال د ټولنیزې، سیاسي اقتصادي او کلتوري وضعې د څرنګوالي په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

په افغانستان کې د آریایانو تر ټولو لرغونی مدنیت د ویدي په نامه یادېږي. د ویدي اصطلاح د وید له کلمې څخه اخیستل شوې ده چې د پوهې او علم معنا لري. دا مدنیت ځکه ویدي یادشوی، چې معلومات یې د ویدي له څلورو کتابونو (ریګویدا، اتهرو ویدا، ساما ویدا او ویجورو ویدا ) څخه لاس ته راغلي دي. د دې سرودونو پیل تر میلاده دوه زره کاله وړاندې مهالونو پورې اړه لري چې په شفاهي ډول د اریایانو له خوا له یوه نسله څخه بل ته را نقل شوي او شپږ پېړۍ پخوا تر میلاد په سانسګریت ژبه لیکل شوي دي.


د بلخ د بالاحصار یو انځور

آریایانو د ویدي مدنیت پر مهال د بُخدي لرغونی ښار د خپل لومړني پایتخت او اداري مرکز په توګه وټاکه او د کوچیاني ژوند تر څنګ یې په کرنه او بنوالۍ لاس پورې کړ.

د اوسېدلو لپاره یې ارت پراخ کورونه جوړ کړل. د ښارونو په جوړولو یې لاس پورې کړ او د هغو ښارونو د ساتنې لپاره یې پلن دیوالونه او لوړ برجونه ودان کړل چې زیاتې نښانې یې لا تر اوسه هم پاتې دي.

د ویدي مدنیت وګړو د ژویو د څرولو او کرنې له لارې خپلې اړتیاوې پوره کولې. ژوي یې اهلي کړي وو او د هغو پر شیدو او غوښو سربېره یې د هغو له پوستکو څخه تودې جامې او ښکلې جوړولې. ژوي به یې د سکې په ځای سره بدلول او هغه به یې د تبادلې بنسټ ګرځاوه چې د پیسو په نامه یې یادول، خو په عمومي توګه به یې د سوداګرۍ په معاملو کې جنس د جنس په مقابل کې تبادله کاوه.

د کرنې په برخه کې یې هم لاس ته راوړنې درلودې، بېلا بېلې دانې غلې یې پېژندې چې په ویدي سرودونو کې یې په وار وار یادونه شوې ده. په دوی کې د ښکلو خاورینو لوښو جوړول دود وو. ښکلې ګاڼې به یې هم جوړولې او د ځانګړو جشنونو او میلو پر مهال به یې کارولې.

د ویدي مدنیت پر مهال د ښځو ونډه په بېلا بېلو برخو کې څرګنده وه. یو شمېر ښځو به له خپلو مېړونو سره یوځای په کارکې ملتیا کوله او یو شمېر نورو بیا د کور کارونه پر غاړه اخیستل. د دې تر څنګ

په ښځو هم د يو شمېر نارينه پوهانو(ريشانو) په څېر ټولنيزې چارې پر مخ بېولې او شعرونه به يې ويل.

داسې برېښي چې د ويدي سرودونو ويل او په يادول د زمانې له پلوه ډېر پخوا پيل شوي دي، خو په سرودونوکې تر ټولو پخوانۍ يادې شوې پېښې ترميلاده (۱۸۰۰) کاله د مخه تر مهال پورې اړه لري، چې د ويدي مدنيت څرګند پيل ګڼل کېږي. ويدي مدنيت په پرله پسې توګه ترميلاده ۱۲۰۰ تر۱۰۰۰کاله د مخه دوام درلود.

د زياتو معلوماتو لپاره:

### د ويدي مهال د فرهنګ يوه بېلګه

زوم د خپلې ناوې لاس نيوه او درې واره يې د خپل کور ګرد چاپېره ګرځوله او دا سرود به يې لوسته:

((ستا لاس په نيک شګون نيسم، ترڅو ته له ما سره د ژوند ترپايه ژوندۍ او خوشحاله اوسې!))

کله چې ناوې د مېړه کوټې ته ورسېږي نو په دې شعرونو يې هر کلی کوي:

«دلته دې خوښي ستا په برخه شي. ستا کور دې له مال، شتو او اولادونو څخه ډک شي! ښکلې ناوکې! ته دا کور ساته او له خپل خاوند سره او سېږه، تر زړېدو پورې دې دا کور ستا وي. اوس په دې ځای کې اوسه او له دې ځايه هيڅ کله مه جلا کېږه! ته دې د ډېر عمر، لمسيانو او کړوسيانو څښتنه شې ته دې تل په دې ځای کې خوشحاله اوسې! ... اې د دې کور مېرمنې!»



### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو و وېشل شي، لومړۍ ډله دې د ويدي مدنيت په مهال د کرنې او دويمه ډله دې د ښځو د ونډې په اړه بحث وکړي.



### پوښتنې

۱ - د ويدي کلمه څه معنا لري؟

۲ – په ويدي مدنيت کې د هېواد کوم ښار د مرکز په توګه غوره شو؟

۳ – ويدي مدنيت په کومو کلونو پورې اړه لري؟

# اوستايي مدنيت

په دې لوست کې به په بلخ (بخدي) کې د اوستايي مدنيت د راتګ په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

د اوستايي مدنيت بنسټ په بلخ يا پخواني بخدي کي تر ميلاد څه نا څه زر کاله پخوا کښېښودل شو. دا مدنيت د دې لپاره د اوستايي مدنيت په نوم يادېږي چې په اړه يې زيات معلومات د ((اوستا)) په نامه مذهبي کتاب کې موجود وو او د مؤرخينو لاس ته رسېدلی دی.

اوستا د زردشت يا سپيتمان له خوا ويل شوي نصيحتونه او د هغو معلوماتو يوازينۍ منبع ده چې د لومړنيو آريايي مدنيتونو په نامه د سيمې او په ځانګړې توګه د لرغوني افغانستان د تاريخ ځانګړې څېرکی ګڼل کېږي. د اوستا کتاب د زردشت تر مړينې وروسته را ټول او د اوستا په نامه خپور شو. زيات شمېر پوهان اوستا د قانون او هدايت په معنا پېژني. لومړنی اوستايي متن د غوايي پر ۱۲۰۰۰ پوستکوليکل شوی و چې د يوناني سکندر د بريدونو پر مهال يې زياته برخه وسوځول شوه. تر سکندر وروسته د زردشتي آيين پيروانو د اوستا پاتې شوني را ټول او د هغو پر بنسټ يې د اوستا پنځه برخې وليکلې، چې د يسنا، وېسپرد، ونديداد، يشت او ورو‌کي اوستا په نوم يادېږي.

ويل کېږي چې زردشت له ميلاد څخه د مخه په ٦٦٠ کال په بلخ کي زيږېدلی دی. په شل کلنۍ کې ګوښه شوی او په ٤٢ کلنۍ کې د زردشتي دين لار بنود شو. تر هغه وروسته يې خپل نصيحتونه پيل او ګشتاسپ پاچا يې خپلې لارې ته دعوت کړ. ګُشتاسپ يې دعوت ومانه او زردشتي کيش يې قبول کړ.

زردشت په خپل آئين کې اهورا مزدايي د نيکۍ او اهريمن يې د بدۍ خدايان ګڼل او د هغو دوو تر منځ يې مجادله او مقابله تلپاتې ګڼله. خپلو لارويانو ته به يې ويل چې د اهورامزدا خوا ته ودرېږئ او د اهريمن له شره ځان وساتئ. تر ټولو نامتو وينا يې: ښه انګيرل؛ ښه ويل؛ ښه کول؛ دي.

د ژوزف هاکن په باور هغه انځورونه چې د بلخ د ( دختر نوشيروان) په لرغوني سيمه کې د غرونو پر لويو پرښو او ډبرو توږل شوي، د زردشتي پېر را پاتې آثار او انځور ونه دي.

د اوستا يي مدنيت پر مهال آريايي وګړو داسې دودونه درلودل چې تر اوسه هم د يو شمېر قبيلو

او قومونو په منځ کې دود دي. د بیلګې په توګه د نیزې وهلو لوبه، د اس ځغلولو لوبه، د کال د لومړۍ ورځې جشن، اتڼونه، د مېلو د ورځو سندرې، موسیقي او داسې نور یادولای شو اوستا د هغه مهال یو شمېر سیاسي کورنۍ او واکمنان هم را پېژني چې د افغانستان په تاریخ کې د ا برخه د اساطیري تاریخ (د خیالي افسانو تاریخ) په نامه مشهوره شوې ده چې په راتلونکو درسونو کې به یې ولولو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو و وېشل شي. لومړۍ ډله دې د اوستا او دویمه ډله دې ژوزف هاکن د څېړنو په اړه معلومات د خپلو استازو په وسیله ټولګیوالو ته واوروي.



## پوښتنې

۱ – د اوستا معنا څه ده؟ توضیح یې کړئ.

۲ – د زردشت په اړه څه معلومات لرئ؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د زردشت په اړه د منابعو له مخې معلومات تر لاسه او خپلو ټولګیوالو ته دې واوروي.

# د افغانستان اساطيري تاريخ

## لومړۍ لړۍ: د پيشداديانو واکمنۍ

په دې لوست کې به د پيشداديانو د کورنۍ د واکمنۍ پرمهال د سياسي، ټولنيزې او کلتوري وضعې د څرنګوالي او دغې لړۍ د زوال په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

د يو شمېر او ستايي متونو او يو شمېر شاهنامو د ليکونو پر بنسټ د افغانستان د لرغوني تاريخ درې خورا مهمې دورې پېژندلای شو. دا دورې د پيشداديانو، کيانيانو او اسپه په نامه يادې شوې دي، چې د لرغوني افغانستان د لومړنيو مدنيتونو سياسي واکمنۍ ګڼل کېږي.

لومړنۍ سياسي واکمني د اوستا په کتاب کې د پيشدا ديانو په نامه ياده شوې ده. د دې کورنۍ لومړنی واکمن کيومرث نومېده. ابو ريحان البيروني په خپلو ليکنو کې کيومرث د هوشنګ په نامه يادکړی دی. دا هغه لومړنی آريايي واکمن دی چې په بلخ کې يې د سياسي واکمنۍ بنسټ کېښود. تر کيومرث وروسته د هغه زوی تهمورث واکمن شو. د نومړي د واکمنۍ پر مهال مدبر وزير، چې شېداسپ نومېده، په دولتي چارو کې يې ځانګړې ونډه درلوده. نومړي وزير ولس ته د نورو خدمتونو تر څنګ د جامو جوړولو او وړيو د وريشلو لارې چارې هم وښودلې.

د پيشداديانو د سلسلې يو نامتو پاچا، يما يا جمشېد نومېده، چې تر تهمورث وروسته واک ته ورسېد. يما لومړنی پاچا و چې په بلخ کې يې د ښار بنسټ کېښود. يما ته اهورا مزدا د يوه ښار د جوړولو هدايت وکړ. يما پاچا داسې ښار جوړ کړ چې اوږدوالی او پراخوالی يې د آس د ځغلولو د ميدان په اندازه و. د اوبو ډنډونه، د آس ځغلولو ډګر، د کلو او کورونو لپاره وړ سيمې يې جوړې کړې. د دې تر څنګ يې داسې ژوبڼ هم جوړ کړ چې د ټولو ژويو يوه يوه جوړه يې پکې وساتله.

د يما پاچا د واکمنې پر مهال د وګړو ژوند ته زياته پاملرنه کېدله. زيات نعمتونه موجود وو او خلکو په هوسا او آرامه شپې ورځې سبا کولې. هغه مهال چې ضحاک پر يما بری تر لاسه کړ. د وګړو ژوند له ستونزو سره مخامخ شو. ضحاک په جبر او زور د خپلې واکمنې چارې پر مخ بېولې. خلک ډېر وزوربدل او په پای کې آهنګر کاوه د خپلو پښو چرم د بيرغ په توګه اوچت کړ او خلک يې د ضحاک په وړاندې پا څون ته راوبلل چې په تاريخ کې د کاوياني بيرغ په نامه شهرت لري. فرېدون هم سل آسونه او زر غوايان د قرباني په توګه ومنل. د ضحاک پر ضد يې قيام وکړ، چې په پای کې فرېدون بريالی او ضحاک يې و واژه.

فريدون خپله د واکمنۍ سيمه پر خپلو دريو زامنو ايرج ، تور او سلم و وېشله. تور اوسلم خپل ورور ايرج مړ کړ او واکمني يې خپله کړه . تر هغه وروسته چې د ايرج زوی منوچهر لوی شو،


په باميانو کې د ضحاک د کلا پاتې شوني

د خپل پلار غچ يې له خپلو ترونوڅخه واخيست. خپل دواړه ترونه يې مړه کړل او د واک پر گدۍ کښېناست. د منوچهر د واکمنۍ پر مهال يو شمېر نامتو پهلوانانو خورا مهمه ونډه درلوده. د بېلگې په توگه رستم اوسهراب، نريمان او يو شمېر نورو پهلوانانو د تورانيانو په وړاندې دخپلې واکمنۍ خوراکلکه دفاع کوله.

له فرېدون څخه وروسته د هغه زوی نوذر واک ته ورسېد. د نومړي د واکمنۍ پر مهال توراني افراسياب تر ډېرو جگړو وروسته په دې بريالی شو چې د نوذر ځواکونه وځپي او د بلخ واک څه موده خپل کړي. د نوذر تر مړينې وروسته د هغه زوی اوزوه واک ته ورسېد. نومړی عاقل او هوښيار سړی و. له تورانيانو سره يې ډېرې جگړې وکړې چې وروسته يې له تورانيانو سره خپل سرحد د آمو سيند وټاکه. د پيشداديانو ورستنی واکمن کرشاسپ و چې له ۹ کالو واکمنۍ وروسته د افراسياب له لور سخت وځپل شو او د پېشداديانو د واکمنۍ لړۍ پای ته ورسېدله.



## په ټولگي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو و وېشل شي. لومړۍ ډله دې د پيشدا ديانو د واکمنانو او دويمه ډله دې د بلخ ښار د جوړېدلو په اړه بحث وکړئ.



## پوښتنې

۱ – د پيشدا ديانو موسس څوک و؟ نوم يې واخلئ.

۲ – د بلخ ښار د کوم واکمن له خوا جوړ شو؟ په اړه يې معلومات ورکړئ.

۳ – ضحاک څوک و؟ په اړه يې خپل معلومات وړاندې کړئ.



## له ټولگي څخه بهر فعاليت

زده کوونکی دې د بلخ (بُخدي) يا بلهيکه) ښار په اړوند مقاله چمتو او په ټولگي کې دې ولولي.

# د افغانستان اساطيري تاريخ

## دويمه لړۍ: د کيانيانو واکمني

په دې لوست کې به د کياني لړۍ د واکمنۍ په مهال د سياسي، ټولنيزې وضعې او د دغې لړۍ د سقوط په اړه معلومات ترلاسه کړئ د واکمنۍ په مهال.

د افغانستان د اساطيري تاريخ دويمه لړۍ د کيانيانو په نامه ياده شوې ده. کاوي په ويدي او اوستايي متونو کې د پوه، مشر او امير په معنا کارول شوی دی. دا کورنۍ ځکه کاوي يا کياني بلل کيږي چې د ټولو واکمنانو له نامه سره يې د کي توری نښتی دی. د کياني کورنۍ لومړنی واکمن کيقباد نوميده، چې د رستم پهلوان د پلار په غوښتنه بلخ ته څېرمه د البرز غره پر تخت کښېناست او پنځلس کاله يې واکمنۍ دوام وکړ.

ترکيقباد وروسته د ده زوی کيکاوس د بلخ پرتخت کښينات. کيکاوس له هغو کسانو سره جګړې وکړې چې د آريايي کلتور او مدنيت مخالفت يې کاوه. د جګړې مارو دا ډلې چې د مازندران په ځنګلونو کې اوسېدلې او په اوستايي متونو کې ورته ديوان ويل شوي، دکيکاوس له خوا وځپل شوې او آريايي تمدن يې د هغو له بريدونو او ورانيو وژغوره. په اوستا کې راغلي کيکاوس د دې لپاره چې تر ټولو ځواکمن پاچا شي، د رب النوع ( اناهيتا ) ته يې د ارزيفيه په غره کې سل آسونه، زر غوايان او لس زره پسونه قرباني کړل.

له اوستايي متونو څخه دا څرګند شوې ده چې کيکاوس د ارزيفيه غره پر شا او خوا اووه سترې کلاګانې جوړې کړې. پر اوو سترو هېوادونو يې واکمني درلوده. کيکاوس عاقل، هوښيار او پوه وزير درلود چې پوره جيره يا اوشنر نومېده.(پوره جيره په اوسنۍ پښتو کې د پوره ځير په معنا کارول کيږي.) خو د واکمنۍ په ورستيو کې يې يو لړ داسې تيروتنې وکړې چې د واکمنۍ په بايللو يې تمامې شوې. پوه وزير يې و واژه، آسمانو نو ته د تللو دعوا يې وکړه او د سرحدونو ساتونکي يې لرې کړل، چې په پای کې توراني افراسياب دکيکاوس پر سېمه غالب شو او د کيکاوس واکمني يې ړنګه کړله، خو رستم پهلوان له سيستانه را وخوځېد او د افراسياب ټغر يې ټول کړ.

تر کيکاوس وروسته سياوش د بلخ د تاج او تخت واکمن شو. سياوش په اوستايي متونو کې د سياورشن په نوم ياد شوی دی. نوموړی د بلخ نامتو او زړور واکمن و. سياوش د آريانا ويجه پر سيمه يوه ستره کلا جوړه کړه چې په اوستايي متونو کې د کنګ دژ په نامه ياده شوې ده. نوموړي د تورانيانو د پاچا (افراسياب) له لور سره، چې فرنګيس نومېدله واده وکړ او له هغې څخه يې زوی پيدا


په سمنګان ولایت کې د رستم تخت

شو چې کېخسرو نومېده. سیاوش له تورانیانو سره په مخامخ جګړه کې له منځه ولاړ.

تر سیاوش وروسته د هغه زوی کیخسرو د بلخ واکمن شو. نوموړی د خپل پلار د غچ اخیستلو لپاره له تورانیانو سره وجنګېد. د تورانیانو واکمن افراسیاب او د هغه ورور یې په زنځیرونو وتړل او بیا یې ووژل.

په اوستایي متونو کې راغلي چې کیخسرو د کیانیانو د واکمنۍ بېلا بېلې سیمې یو له بله سره وتړلې او د بشپړې ستر واکۍ (امپراتورۍ) واک او ځواک یې درلود. له همدې امله یې په اوستا یي متونو کې د هېواد جوړونکي په نامه یادونه شوې ده. تر کیخسرو وروسته د افغانستان د اساطیري تاریخ دریمه واکمني چې د اسپه په نامه یادېږي، واک ته ورسېدله.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو و وېشل شي. لومړۍ ډله دې د کیانیانو د نامه معنا او د نامتو واکمنانو نومونه و وایي او دویمه ډله دې د کیکاوس په اړه خپل معلومات ټولګیوالو ته و وایي.



## پوښتنې

۱ – د کیانیانو لومړی واکمن څه نومېده؟

۲ – سیاوش څوک و؟ خپل معلومات وړاندې کړئ.

۳ – د کیانیانو ورستنی واکمن څوک و؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې دخپلې سیمې له مشرانو څخه یو داستان رانقل کړي او ټولګیوالو ته دې ووایي.

# د افغانستان اساطيري تاريخ

## دريمه لړۍ: د اسپه واکمني

په دې لوست کې به د اسپه کورنۍ د سياسي او ټولنيزې وضعې د څرنګوالي په اړه معلومات ترلاسه کوئ.

تر کياني کورنۍ وروسته د پاچا هانو بله لړۍ واک ته ورسېدله چې د اسپه کورنۍ په نامه يې شهرت وموند. ددې کورنۍ د هر واکمن د نامه په پای کې د اسپه کلمه راغلې ده، ځکه په تاريخي متنونو کې د اسپه د کورنۍ په نامه مشهوره شوې ده. د ځينو رواياتو پر بنسټ ددې کورنۍ لومړنۍ ټولواک لهراسپ نوميده. لهراسپ د کيانيانو د واکمنۍ پر ټولو سيمو واکمني درلوده. د يوشمېر څېړونکو په باور لهراسپ له تورانيانو سره په جګړه کې و وژل شو. نوموړی باهمته عادل او د لوړ شخصيت خاوند و. د خپلې واکمنۍ په سيمو کې يې زياتې ودانۍ جوړې کړې. لهراسپ د زردشت دين منلی او د هغه د پراختيا لپاره يې ربړونه ګاللي دي. د لهراسپ څخه دوه زامن پاتې شول چې يو يې ويشت اسپه او بل يې زري وري نومېده.

ويشت اسپه يا ګشتاسپ د پلار تر مړينې وروسته د بخدي واکمن شو. د ګشتاسپ شهرت له دې کبله زيات شو چې له زردشت سره يې ملتيا وکړه او د هغه د آيين د خپرولو لپاره يې ډېر ربړونه وګالل. زردشت له ګشتاسپ څخه هيله وکړه چې خپله ميرمن هوتاوسا هم خپل آيين ته دعوت کړي. ترڅو زردشت آيين لرو ځايونو ته ورسيږي. د ګشتاسپ په امر د زردشت ټولې ويناوې(اوستا) د غوايي پر ۱۲ زره پوستکو وليکل شوې. د ګشتاسپ د واکمنۍ پر مهال د تورانيانو سره زياتې جګړې ترسره وشوې. تر ګشتاسپ وروسته د هغه زامن واک ته ورسېدل. له دې سره سره چې د زري وري د واکمنۍ په اړه زيات معلومات نشته، خو د هغه د پهلوانۍ په اړه چې په سيستان کې اوسېده، زيات تاريخي روايات ويل شوي دي. د ګشتاسپ د بل زوی سپينتو داتا يا اسفنديار د واکمنۍ په


په بلخ کې د نوبهار د اورتون د پاتې شونو یو انځور

اړه زیات معلومات شته. ویل کېږي چې اسفندیار زړور او هوښیار واکمن و. هغه د بلخ پر اورتون داسې نیزه ودروله چې معنا یې د خپلې سېمې څخه په مېړانه دفاع او د پردیو مخنیوی و. دا مطلب یې په ټولو رسمي لیکونو کې خپلو ګاونډیانو ته ورساوه او د خپلو سیمو لپاره یې د ودانیو زیاتې چارې تر سره کړې. د زردشتي آئین لپاره یې زیات خدمتونه وکړل او هغه ته یې تر خپلې ولکې لاندې سیمو کې وده ورکړه. د اسفندیار تر مړینې وروسته د اسپه د کورنۍ واکمنې پای ته ورسېده.



### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو و وېشل شي. لومړۍ ډله دې د اسپه کورنۍ، دویمه ډله دې د لهراسپ او دریمه ډله دې د ګشتاسپ په اړه خپل معلومات نورو سره شریک کړي.



### پوښتنې

۱ د اسپه کورنۍ ولې په دې نامه یاده شوې ده؟

۲ – د اسپه کورنۍ لومړنی واکمن څه نومیده؟ په اړه یې معلومات وړاندې کړئ.

۳ – د اسپه کورنۍ وروستی واکمن څوک و؟



### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د لرغونو اورتونونو په اړه د بېلا بېلو رسنیو په مرسته نوي معلومات راټول او په ټولګي کې دې نورو ټولګیوالو ته واوروي.

# لرغونی افغانستان او هخامنشیان

په دې لوست کې به د افغانستان او هخانشیانو تر منځ اړیکو او د یونانیانو په واسطه د هغوی د رانسکورېدو په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

تر میلاد څخه وړاندې شپږمې پېړۍ پورې د آریانا پر زیاتو سیمو د اوستایي واکمنانو حاکمیت برلاسی و. د همدې پېړۍ په پیل کې د لرغوني افغانستان د لویدیځو کرښو ها خوا د هخامنشي واکمنۍ بنسټ کېښودل شو. هخامنشیانو د فارس پر اړوندو سیمو سربېره د خپلې امپراطورۍ د لویدیځو او ختیځو کرښو څخه بهر سیمې هم تر خپلې ولکې لاندې راوستلې او د یوې لویې امپراتورۍ لمن یې په پخواني فارس او شا و خوا سیمو خپره کړه.

هخامنشیانو پر فارس باندې تر واکمن کېدو وروسته د خپلې واکمنۍ د غځولو هڅې پیل کړې. د کوروش د واکمنۍ پر مهال هخامنشانو په ختیځو او لویدیځو لورو ته یرغلونه پیل کړل. دا مهال په ټول لرغوني افغانستان کې یو مرکزي دولت  او واحده سیاسي واکمني نه وه او د افغانستان په هر گوټ کې محلي حکومتونو او ملکوت الطوایفو (وړو واکمنیو)حاکمیت درلود.

له میلاد څخه د مخه په ٥٤٩ کال کې د کوروش ترفرمان لاندې لښکر د افغانستان یو شمېر سېمې تر یوې مودې پورې تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستې. له کوروش څخه وروسته د ده زوی کمبوجیه واک ته ورسېد. هغه د فارس لوېدیځو پولو ته پام درلود. د مصر له فرعون سره یې جگړې وکړې او هغه ته یې ماته ورکړه او د هغه سېمې یې تر خپلې واکمنۍ لاندې راوستې. نوموړی پارس ته



د کروش د واکمني پرمهال د هخامنشیانو د امپراتورۍ قلمرو

د بېرته راتګ پرمهال مړ شو.

له کمبوجي څخه وروسته هخامنشيانو د لړۍ یو شخص د لومړي داریوش په نامه واک ته ورسید نوموړي د هند د خاورې د نیولو په موخه د سیند له اوبو تېر شو، پنجاب او سند یې ونیول. له همدې امله له هند څخه په زیاته کچه د سرو زرو کلني عایدات، چې اندازه یې ۳۶۰ طلا تالانه (د هغه مهال د سرو زرو قیاسي واحد وه چې د سند او پنجاب له بومې (اصیلو) وګړو څخه د باج په توګه هخامنشي واکمنانو ته ورکول کېدل. داریوش خپله پراخه امپراتوري چې په هغې کې د وګړو بېلا بېل ۴۸ ډوله نژادونه، د وګړو بېلا بېل کیشونه، او د بېلا بېلو ژبو او دودونو لرونکي وو، په خورا تدبیر تر خپلې ولکې لاندې ساتل.

په یو شمېر ډبرلیکونو کې، چې د هخامنشي واکمنانو را پاتې دي، داسې لیکنې شته چې د ختیځ پر لور د هخامنشي واکمني غځېدلې او خوره شوې ده. یو له هغو ډبرلیکونو څخه د بې ستون ډبرلیک دی چې د هخامنشي واکمنانو تر ولکې لاندې ۲۱ او یا زیاتې سېمې یادې شوې دي.

د هخامنشیانو یو شمېر نامتو واکمنانو لکه: لومړی داریوش، خشیار شاه، دویم داریوش او دویم اردشیر او یو شمېر نور د واک ګدۍ ته ورسېدل. زیاتې سېمې یې تر خپلې ولکې لاندې راوستې، خو ۳۳۱ کاله پخوا تر میلاد یونانیانو د هخامنشي امپراتوري راوپرځوله او اړوندې سېمې یې د یوناني امپراتورۍ برخې وګرځولې.



### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو و وېشل شي. لومړۍ ډله دې د هخامنشیانو نامتو واکمنان معرفي او دوېمه ډله دې د بیستون ډبرلیک په اړه خپل معلومات ټولګیوالو ته واوروي.



### پوښتنې

۱ – کوم هخامنشي واکمن د افغانستان د نیولو هڅې وکړې؟ معلومات ورکړئ.

۲ – هخامنشي امپراتوري د چا له خوا را وپرځول شوه؟ په لنډه توګه خپل معلومات وړاندې کړئ.



### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د هخامنشي امپراتورۍ په اړه معلومات را ټول او بیا دې په ټولګي کې نورو ټولګیوالو ته ولولي.

# لرغونی افغانستان او یونانیان

په افغانستان کې د یوناني واکمنۍ پېژندنه په دوو مهمو پړاونو کې شونې ده. لومړی هغه پړاو دی چې د مقدوني سکندر د بریدونو (۳۳۰ کاله پخوا تر میلاد) را پیلېږي او د سکندر تر مړینې دوام مومي. دویم پړاو په افغانستان کې له سکندر وروسته د یوناني قوماندانانو د واکمنۍ پېر دی چې تر ۲۵۵ کاله پخوا تر میلاد پورې یې دوام وکړ.

## الف: د مقدوني سکندر بریدونه او د هغه مړینه

مقدوني سکندر د هخامنشیانو امپراتوري له منځه یووړه او د هخامنشیانو وروستی واکمن، دریم داریوش د افغانستان پر لور وتښتېد. مقدوني سکندر ۳۳۰ کاله پخوا تر میلاد د دریم داریوش د تعقیب لپاره لومړی هرات او بیا د باختر پر لور خپلې لښکرې چمتو کړې. دریم داریوش د باختر د والي، بسوس د پلویانو له خوا و وژل شو. د هرات واکمنانو په پیل کې د سکندر لښکرو ته په لاره ورکړه او مقدوني سکندر د بسوس د نیولو او ځپلو لپاره د باختر پر لور وخوځېد، خو له هرات څخه د سکندر د ځواکونو د تګ پر مهال د هرات خلکو پاخون وکړ او د دې پاخون په پایله کې د اناکسپ په نامه یوناني قوماندان ووژل شو. مقدوني سکندر، چې د هرات له پېښې څخه خبر شو، سمدلاسه یې د هرات د بېرته نیولو پرېکړه وکړه او هرات ته یې مخه کړه او د پخواني هرات (آریا) ته څېرمه یې ټول پاخون کوونکي، چې په یوه ځنګل کې یې د هرات د دفاع لپاره مورچلې نیولې وې، همله وسوځول او بیا یې د یوناني لښکرو د ساتنې او پالنې په نیت د آریا سکندریې په نامه د یوه نوي ښار بنسټ کېښود چې د هرات اوسنی ښار ګڼل کېږي.

د مقدوني سکندر یو انځور



د هرات ترنیولو وروسته یوناني لښکرو د سکندر تر مشرۍ لاندې د فراه ولایت

پر سيمو يرغل پيل کړ او د سيستان سېمې يې هم تر خپل واک لاندې راوستلې. د دې يرغل په دوام يې د هلمند پر دواړو څنډو پرتې سېمې يو په بل پسې لاندې کړې او په دې لړ کې يې د بلوچستان مرکز (زرياسپ ) هم ونيو.

وروسته له هغه بيا يې د اراکوزيا د سيمو لاندې کولو ته خپلې لښکرې اړم کړې او ۳۲۹ کاله پخوا تر ميلاد يې اراکوزيا ترلاسه کړه او په همدې کال يې د اوسني کندهار ښار ته څېرمه سېمه کې د يوه عسکري کوټ بنسټ کېښود. د اراکوزيا (کندهار ) له اوسېدونکو څخه يې نوی ځواک جوړ کړ او د اراکوزيا ولايت چارې يې د ممتين په نامه يوه تن ته وسپارلې. له دې سره سره چې تر دې مهاله سکندر د لرغوني افغانستان درې مهم ولايتونه هرات، بلوچستان او کندهار تر خپل واک لاندې راوستي وو، خو د هرات پخواني واکمن، بسوس په مرسته دوه زره لښکرد هرات د دفاع لپاره چمتو او په هرات کې يې د خپلواکۍ اعلان وکړ. سکندر د هراتي پاځون د ځپلو لپاره زيات شمېر لښکرې ولېږلې هرات يې محاصره او د يوې درنې جګړې په ترڅ کې يې د هراتيانو د پاڅون مشر ساتي بارزانس و واژه او هرات بيا د سکندر د ځواکونو تر امر لاندې شو.

د هرات، سيستان او کندهار تر نيولو وروسته مقدوني سکندر د کابل د سيمو نيولو ته متوجه شو. اسکندر تر ميلادد وړاندې ۳۲۹ کال کې کابل ته راورسېد. د دې سيمو تر لاندې کولو وروسته د پغمان له لارې کاپيسا ته ولاړ او هلته يې د خپلو عسکرو لپاره د قفقاز سکندريه ( اوسنی بګرام ) جوړ کړ. د همدې کال په پسرلي کې يې د اندراب له لارې د بسوس پر ځواکونو بريدونه پيل کړل. بسوس د اتو زرو ځواکونو په مټ د مقاومت ډګر ته را ووت، خو د سکندر له زياتو لښکرو سره يې د پر له پسې مقابلې توان له لاسه ورکړ او د آمو سيند پورې غاړې ( سغد ) ته واوښت. بسوس له هغه ځايه د باختري ځواکونو په مټ د سکندر پر لښکرو بريدونه کول او تر ميلاد وړاندې ۳۲۷ کال پورې يې دوام وکړ. په همدې کال سکندر له يوه باختري ځواکمن

قوماندان سره د دوستۍ لاس ورکړ او د رخشانې په نامه له یوې پیغلې سره یې واده وکړ او په دې ډول یې د باختر سېمه تر خپل ګورت لاندې وساتله.

سکندر د باختر تر نېولو وروسته د کاپیسا له لارې د کابل سیمو ته را وګرځېد او بیا د درونټې له لارې کونړ او اسمار سیمو ته ورسېد. په نوموړو سیمو کې له یوسفزو سره تر درنو جګړو وروسته تېې شو او بیا یې د باجوړ او چترال سېمې تر خپل واک لاندې کړې.

سکندر د سیمو د نیولو لړۍ جاري وساتله او تر میلاده وړاندې په۳۲۵ کال د کراچۍ په سمندري بندر کې یوه بله سکندریه جوړه او له هغه ځایه د ګدروزیا ( بلوچستان) پر لور د پارس سیمو ته ورسېد. کله چې بابل ته ورسېد، هلته د ملا ریا د ناروغۍ له امله مړشو. دامهال دی ۳۲ کلن و.

**ب: د سکندر تر مړینې وروسته د یونانیانو امپراتوري**

د سکندر تر مړینې وروسته د یوناني قوماندانانو تر منځ د واک پر سر ډېرې خونړۍ جګړې وشوې. د مقدونیې په ښار کې د کاسندر په نامه یو تن قوماندان واک ته ورسېد او د سکندر مور یې د پیرنا په ښار کې محاصره او بیا یې و وژله. په دې ډول د سکندر په لویه امپراتورۍ کې ګډوډې منځته راغله او د دې ګډوډۍ پایله دا شوه چې یوناني امپراتوري په دریو لویومرکزونو ووېشل شي.

۱ – د سکندر تر مړینې وروسته، بطلیموس له یوناني امپراتورۍ څخه مصر بېل او تر خپلې ولکې لاندې راوست. له بطلیموس څخه وروسته د دغې کورنۍ واکمنان په پر له پسې توګه تر ۳۰ کاله مخکې تر میلاد د مصر پر سیمو واکمن پاتې شول.

۲ – د یوناني امپراتورۍ په پلازمېنه ( مقدونیه ) کې انتي ګوس واک ته ورسېد. انتي ګوس او د هغه کورنۍ د ۳۰٦ کاله وړاندې تر میلاده بیا تر ١٤٦ کاله وړاندې تر میلاده پر مقدونیه او اړوندو سیمو واکمن پاتې شول.

۳ – د سلیکوس په نامه یوناني قوماندان په سوریه کې واک ته ورسید او د یوناني امپراتورۍ ختیځې سېمې یې له سوریې څخه تر هنده پورې تر خپل کنټرول لاندې راوستلې چې افغانستان هم د سلیکوس تر واک لاندې سیمو کې شمېرل کېده. سلیکوس او د هغې لړۍ نورو واکمنانو په افغانستان کې د دیودتس تر مهاله واک درلود، خو د بطلیموس او سلیکوس د ځواکونو تر منځ پر له پسې جګړو دیودیتس ته په باختر کې تر میلاده وړاندې ۲۵۵ کال کې د خپلواکۍ د اعلانولو زمینه برابره کړه، چې د یونان باختري دورې په لوست کې به یې په بشپړه توګه ولولو.



### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په نقشه کې د مقدوني سکندر د لشکر کشیو لورې وښیي.



### پوښتنې

۱ – مقدوني سکندر په کوم کال د هخامنشیانو امپراتوري له منځه یووړه؟ خپل معلومات وړاندې کړئ.

۲ – مقدوني سکندر په باختر کې له کومې نجلۍ سره واده وکړ؟

۳ – د سکندر تر مړینې وروسته د یونانیانو امپراتوري له کوم برخلیک سره مخامخ شوه؟ معلومات وړاندې کړئ.



### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د مقدوني سکندر په اړه د لوست له کتاب پرته له بل کتاب څخه معلومات را غونډ او ټولګیوالو ته دې ووایي.

# لرغونی افغانستان او موریایان

په دې لوست کې به د موریایانو او په هغه مهال کې د افغانستان سیاسي وضعې په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

د موریایانو لومړنی واکمن چندراګوپتا نومېده چې له میلاد څخه ۳۲۴ کاله مخکې یې د هند پر ټېلا بېلو سیمو واکمني پیل شوه. چندراګوپتا د افغانستان په ختیځو برخوکې یو شمېر سیمې، چې د یوناني واکمنانو تر لاس لاندې وې، ونیولې. دا مهال د یوناني سلیکوس لښکرو تر درنو جګړو وروسته لومړی باختر او بیا یې د کابل وادي بیرته ونیوله او د سیند تر سینده یې د چندراګوپتا ځواکونه تعقیب کړل، خو د لنډو بریو وروسته د چندراګوپتا د ځواکونو تر پر له پسې بریدونو لاندې شو او په پای کې یې له چندراګوپتا سره د دوستۍ لاس ورکړ. خپله لور یې هغه ته په نکاح کړه او ګندهارا، اراکوزیا او ګدروزیه یې هم د چندراګوپتا ځواکونو ته پرېښودل. او باختریې د دیودوتس په واک کې ورکړ، چې وروسته همدې باختري واکمن د خپلواکۍ اعلان وکړ.

چندراګوپتا ۳۰۰ کاله پخوا تر میلاده مړ شو. وروسته یې زوی بندوسارا د هند پر ګدۍ کښېناست. دا مهال د یوناني امپراتورۍ بېلا بېل مرکزونه جوړ شوي وو او د هغو تر منځ تودو جګړو دوام درلود. له دې سره سره چې د یوناني بېلا بېلو مرکزونو تر منځ جګړې کېدې، خو د سلوکیدیانو او موریایانو تر منځ د ښو اړیکو لمن ورځ په ورځ پراخېدله. د هند یو مؤرخ ابوظفر ندوي لیکي:

((د هند واکمن بندوسارا انتیاکوس ته پیغام ولېږه چې ماته یوتن طبیب، خواږه شراب او یو څه وچ انځر را ولیږه ! انتیاکوس یې په ځواب کې ولیکل، خواږه شراب او وچ انځر به در ولیږم، خو د یونانیانو په قانون کې د عالم او طبیب پلورل منع دي)).

د مور یایانو او سلیوکیدیانو تر منځ ښو اړیکود دې زمینه برابره کړه چې هندي سوداګریز توکي له هندڅخه باختر او بیا به د سلوکیدیانو د واکمنۍ او تر هغو وړاندې نورو سیمو ته رسېدل. او برعکس له همدې سیمو څخه سوداګریز توکي د هند لوري ته رسېدل. دا سوداګریزې اړیکې د دې لامل شوې چې د یوناني او هندي کلتور تر منځ د ګډېدو او یوځایوالي زمینه برابره شي.



د چندراګوپتا د مهال یوه طلایي سکه

تر بندوسارا وروسته د گوپتايي کورنۍ نامتو واکمن اشوکا د واک پر گدۍ کښېناست. اشوکا د بودايي دين د خپرولو په لار کې زيات زيار وايست. ډېر شمېر مبلغان يې افغانستان او د نړۍ بېلا بېلو برخو ته ولېږل. تر واک لاندې سيمو کې يې هغه فرمانونه پر ډبرو وليکل چې د بودايي ائين استازيتوب يې کاوه. په کندهار، ننگر هار ( درونټه ) او يو شمېر نورو سيمو کې د اشوکا فرمانونه شته چې پر ډبرو ليکل شوي دي. د اشوکا په فرمانونو کې د ايتودموس ( ای تيوديم )د نوم څرک نه ليدل کېږي، د دې معنا دا ده چې د اشوکا د واکمنۍ پر مهال په افغانستان کې د ای تيوديم واکمني لا نه وه پيل شوې. د ای تيوديم د واکمنۍ له پيل سره سم د اشوکا هغه والي چې د کابل حوزه اوگندهارا يې تر واک لاندې وه، له ماتې سره مخ شو او په دې توگه د موريايانو واکمني د افغانستان پر سهيلي سيمو له منځه ولاړه او په ۲۵۵ کاله پخوا تر ميلاده ای تيوديم د باختر بريدونه د هندوکش تر سهيلي سيمو راورسول او د افغانستان د خپلواکۍ اعلان يې وکړ.



## په ټولگي کې فعاليت

زده کوونکي دې پر دريو ډلو و وېشل شي. لومړۍ ډله دې د هخامنشيانو، دويمه ډله دې د يونانيانو او دريمه ډله دې د موريايانو د واکمنيو سيمې او سرحدونه په نقشه کې وښيي.



## پوښتنې

۱ - د موريايانو د لومړني واکمن په اړه څه معلومات لرئ؟ توضيح يې کړئ.

۲ – بندوسارا سلوکيدي واکمن ته څه وليکل او بيا يې څه ځواب تر لاسه کړ؟ خپل معلومات وړاندې کړئ.

۳ – د اشوکا د کيش په اړه څه معلومات لرئ؟ بيان يې کړئ.

# دویم څپرکی
# په افغانستان کې لومړني مدنيتونه

دا څپرکی لاندې لوستونه لري:

- د يوناني باختري خپلواک دولتونه
- د يوناني باختري مدنيت ځانګړتیاوې
- د يوناني باختري دورې نامتو ښار( آی خانم )
- ساکان
- د کوشانيانو امپراتوري
- بګرام يا د کوشاني امپراتورۍ پلازمېنه
- هډه يا د کوشاني امپراتورۍ کلتوري مرکز
- باميان د کوشاني امپراطورۍ عقيدتي مرکز
- کيداريان يا کوچني کوشانيان
- د يفتليانو امپراتوري
- د اسلام د ظهور پر مهال د افغانستان وضع.

# د څپرکي موخې

هیله کیږي چې د دې څپرکي په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:

- له یوناني باختري دولت، د آی خانم ښار، د پارتیانو او ساکهانو واکمنې، د کوشانیانو امپراتورۍ او د هغې د مهمو مرکزونو، د کیداریانو حاکمیت، د یفتلیانو امپراتورۍ او د اسلام د ظهور پر مهال د افغانستان له وضعیت سره آشنایي.
- د یوناني باختري مدنیت پر ځانګړتیاوو او د آی خانم د ښار د جوړښت پر ډول پوهېدل.
- د بګرام، هډې او بامیانو په ارزښت پوهېدل.
- د هېواد له توریستي او لرغونو سیمو سره د لیوالتیا پیدا کېدل.

# یونان - باختري خپلواک دولتونه

په دې لوست کې به د یونانیانو باختري دولت د جوړیدو او د باختر له سیاسي وضعې سره، چې سغد، مروې، بلخ او تخار سیمې پکې شاملې دي، آشنا کېږئ.

لومړی دیودیتس د یونان – باختري دولت بنسټ ایښوونکی دی. نوموړي ۲۵۵ کاله پخوا تر میلاده په باختر کې له یوناني سلوکیدیانو څخه خپله خپلواکي اعلان کړه. د دیودیتس واکمنی دوه پړاوه درلودل. په پیل کې دیودیتس په باختر کې داسې مسکوکات جوړ کړل چې د سکې پر یو مخ د دیودیتس انځور او پر بل مخ یې د انتیکیوس څېره ښکارېده خو د دیودیتس د واکمنۍ وروستي مسکوکات بیا له خپلواکۍ وروسته جوړ شوي دي. په دې مسکوکاتو کې د سکې پر یوې خوا د دیودیتس څېره او پر بل مخ یې د جیوپیتر څېره (د رعد او برق الهه) انځور شوې وه. د دیودیتس تر واکمنۍ لاندې سیمې تر باختر پورې چې سغد، او مروه، بلخ او تخار سیمې په کې شاملې وې وې.
لومړی دیودیتس۲۵۰ کاله پخوا تر میلاده مړ شو.

د لومړي دیودیتس تر مړینې وروسته د هغه زوی دویم دیودیتس واکمن شو. نوموړي تر ۲۳۰ کاله وړاندې تر میلاده د باختر پر سیمو واکمني درلوده. د دویم دیودیتس د واکمنۍ پر مهال یو شمېر نورې سیمې هم د باختر تر واک لاندې شوې. هرات او د هریرود سیمې هم د باختر تر کنټرول لاندې سیمې شوې. هغه مهال د پارت دولت د مشر ارساس او دوهم دیودیتس تر منځ د ملګرتوب او دوستۍ اړیکې زیاتې شوې. په دې ډول د سلوکیدیانو په وړاندې دوه نوي خپلواک دولتونه سره ملګري او متحد شول.

د دیودیتس د کورنۍ واکمنۍ زیاته موده دوام ونه کړ ځکه چې د ای تیدیوم په نامه یوه تن قوماندان ۲۲۰ کاله پخوا تر میلاده د دیودیتس پر خلاف پاڅون وکړ او د هغه واکمني یې له منځه یوړه.

ای تیدیوم ۲۲۰ کاله پخوا تر میلاده د باختر نوی خپلواک واکمن شو. دا مهال د شام یوناني

واکمن انتیکوس د پارت پر نوي خپلواک شوي دولت برید وکړ او د پارتي دولت تر نړولو وروسته یې د باختر پر لور بریدونه پیل کړل. ای تیدیوم د جګړې او مقابلې لپاره د دښمن د مخنیوي لپاره هریرود ته ورسېد او هلته تر یوې درنې جګړې وروسته له ماتې سره مخامخ شو وروسته له هغه یې د خپل مرکز پر لور مخه کړه او په خپل مرکز کې یې چې د زریاسپ په نوم یادېده د خپلې واکمنۍ څخه د دفاع ملا وتړله. دا دفاع تر دوو کالو وغځېده. د شامي واکمن له لوري دا ښار په محاصره کې وساتل شو. تر دوو کلونو وروسته د دواړو لورو تر منځ روغه وشوه او تر دې روغې وروسته ای تیدیوم د خپلې واکمنۍ د زیاتولو او لا غښتلي کولو لپاره مناسبه زمینه ومونده.

ای تیدیوم د باختر لومړنی واکمن و چې یوناني هنر یې د هند لویې وچې ته ورساوه. د یو شمېر مؤرخینو په باور د هغو خروشتي ډېرلیکونو پر بنسټ چې په هند کې تر لاسه شوې دي. دا څرګندېږي چې یوناني هنر مندانو او صنعت کارانو خپله اغېزه د هند پر سیمو کړې ده.

تر ای تیدیوم وروسته د هغه زوی دیمیتروس په ۱۹۰ کاله پخوا تر میلاده واک ته ورسېد. نوموړي د خپلې واکمنۍ سیمې لا پراخه کړې. تاکسیلا کاتیا وار او د موریاپته سیمې یې د هند له واکمنانو څخه ونیولې. دیمیتروس د خپلې واکمنۍ په بېلابېلو سیمو کې د نویو ښارونو د جوړولو کارونه پیل کړل چې په اراکوزیا کې کلات، په سند او هند کې سیالکوټ او پتیاله یې خورا مهمې بېلګې دي.



د دیمیتروس د مسکوکاتو یوه بېلګه

د باختري يونان د کورنۍ وروستی واکمن ديميتروس و چې د خپل يوقوماندان له خوا يې ماته وخوړه. د هغه قوماندان، چې ايوکراتيډ نوميده، د يوې نوې کورنۍ بنسټ کېښود.

ايوکراتيد په ۱۸۱ کاله پخوا تر ميلاده په بلخ کې واک ته ورسېد او پر ټولې لرغونې آريانا يې واکمني درلوده. د ايوکراتيد د واکمني پر مهال د ای تيديوم د کورنۍ پاتې شونو د پارتيانو په




د ايوکراتيد د مسکوکاتو بېلګه

مرسته د ايوکراتيد پرضد يو لړ فعاليتونه پيل کړل. د دې فعاليتونو په ترڅ کې د ايوکراتيد واکمني کمزورې شوه او د خپلې واکمنۍ مرکز يې تر ميلاد پخوا په ۱۳۵ کال کې د هندوکش سويل يا کاپيسا ته ولېږ داوه.

تر ايوکراتيد وروسته د هغه زوی هيلوکلس د واک پر ګدۍ کېنېناست. نوموړی چې د يونان – باختري دورې وروستی ځواکمن پاچا پېژندل کېږي، د خپلې واکمنۍ سېمه يې د هندوکش له شماله بيا ترګندهارا او جيهلم پورې و غځوله. ۳۶ تنو باختري يوناني واکمنانو پر باختر او اړوندو سيمو واکمني درلوده. سل کاله پخوا تر ميلاده د لرغوني افغانستان په سويلي سيمو کې د ساکانو په نامه يوې بلې کورنۍ ورځ په ورځ د خپلې واکمنۍ سېمې پراخولې او ورو ورو يې د يونان باختري پېر يو شمېر سېمه ييز واکمنان تر خپل واک لاندې راوستل او د يونان باختري پېر واکمني يې د له منځه وړلو له خطر سره مخامخ کړه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په نقشه کې د کاپیسا، پتیاله او جهلم موقعیتونه وښیي.



## پوښتنې

۱ – په لومړي ځل د یونان باختري پېر کوم واکمن د باختر خپلواکي اعلان کړه؟ په دې اړه خپل معلومات وړاندې کړئ.

۲ – ای تیدیوم څوک و؟ په اړه یې خپل معلومات وړاندې کړئ.

۳ - د یونان باختري دورې وروستی امپراتور څوک و؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې په نورو خېرونو او کتابونو کې د یونان –باختري پېر د مسکوکاتو انځورونه ومومي او په اړه دې خپل راټول شوي معلومات په ټولګي کې نورو ټولګیوالو ته واوروي.

# د یونان - باختري مدنیت ځانګرتیاوې

په دې لوست کې به په لرغوني افغانستان کې د یونان باختري مدنیت له ځانګرتیاوو او اهمیت سره آشنایي پیداکوئ.

افغانستان د زیات شمېر مؤرخینو او څېړونکو له نظره خورا ستراتژیک ټاټوبی ګڼل شوی دی. انګلیسي نامتو مؤرخ تاینبي افغانستان د لرغونو مدنیتونو د یوځای کیدلو د ټاټوبي په نامه یاد کړی دی. جاپاني لرغونپوه (ماوریز یوتوزي) لرغوني افغانستان ته د سوداګرۍ او راکړې ورکړې د څلور لارې نوم ورکړی دی. علامه حبیبي افغانستان په سیمه کې د لرغونو مدنیتونو د زانګو په نامه نوملی دی. په دې تر تیب نور القاب او عناوین هم د لرغوني افغانستان د ارزښت په اړه یاد شوي دي. د هغو لرغونو مدنیتونو له شمېرڅخه یو هم د یونان باختري مدنیت دی چې په افغانستان او سیمه کې د یوه نامتو تاریخي مدنیت په توګه پېژندل شوی دی.

یو نان باختري مدنیت د دوو مدنیتونو ټولګه ده. دا دوه مدنیتونه چې یو یې د یونانیانو په وسیله له هغوی سره یو ځای افغانستان او سېمې ته را رسېدلی او بل یې په باختر کې دځایي اوسیدونکو مدنیت و چې د لرغونو آریایي مدنیتونو پر بنسټ یې وده کړې وه. د دې دواړو مدنیتونو یو ځایوالي په سیمه او لرغوني افغانستان کې د نوي مدنیت بنسټ کېښود چې په تاریخ کې د یونان – باختري مدنیت په نامه پېژندل شوی دی.

یونانیانو په خپل هېواد کې یو په بل پسې د لوړو فکرونو او اندونو نامتو پړاونه تېر کړي وو، چې یو پړاو یې د هیراکلت، افلاطون، بطلیموس او نورو فیلسوفانو پړاو و دا پړاو له یوناني امپراتورۍ سره یوځای وغوړېد. د ودانیزو چارو بېلابېلي تجربې یې آزمويلي او کارولي وې چې د بېلګې په توګه کولای شو د پڼي جوړولو (مجسمې جوړولو) نوم واخلو چې د کمال تر پولې رسیدلې وه.

یونانیانو له خپلو فتوحاتو سره یوځای خپل مدني لاس ته راوړني هم له ځان سره تر واک لاندې سیمو ته لېږلې، چې بېلګې یې په ټولو تر لاس لاندې سیمو او په ځانګړې توګه لرغوني افغانستان کې څرګندې دي.

یوناني معمارانو د عسکري کوټونو لپاره داسې ځایونه غوره کول چې د دوو یا دریو خواوو به د طبیعي موانعو په مرسته ساتل کېدل او یا یې د ساتنې شونتیاوې درلودې، یوه خوا به یې د خپلو څواکونو په مټ ساتله. دا ډول ودانۍ د افغانستان په بېلا بېلو برخو کې لېدل کېږي. د بېلګې په توګه د ای خانم لرغوني سیمه، چې د کوکچې او آمو سیند په تقاطع کې ودانه شوې ده یادولای شو. د بګرام لرغوني سېمه یوه بله بېلګه ده چې د شتل او پنجشیر سیندونو د تقاطع پر ځای جوړه شوې ده.

پڙې جوړول د يوناني هنر يوه بله بېلګه ده چې په لرغوني افغانستان کې يې د افغاني هنر مندانو په مټ زياته وده وکړه. دا هنر د باميانو او نورو پڙيو په شتون سره په وروستيو دورو کې د نړيوال فرهنګي ميراث په توګه پېژندل شوی دی. د يوناني ليکدود زياتې بېلګې د ډېرليکونو پر مخ ليدل کيږي، چې هغه مهال د هېواد په بېلا بېلو برخو کې معمول و. دا ليکدود نه يوازې د لرغوني افغانستان د تاريخي پېښو په اړه ډاډمن اخځونه دي، بلکې په افغانستان کې د يوناني علمي بهيرد غوړېدلو استازيتوب هم کوي.

د يوناني تمدن بېلا بېلې بېلګې چې د ودانيو جوړولو په ميتودونو، د پڙيو جوړولو په مهارتونو او د ليکدودونو په کارونو کې ليدل کېږي، د افغانانو په مټ يې په افغانستان او سېمه کې وده او پراختيا موندله. لومړی ولسونو دا نوښتونه ومنل او بيا يې په خپلو سيمو کې د تعميم او زياتولو لپاره کار او زيار وګاله. له همدې امله په يونان باختري دوره کې ټولې يوناني مدني لاس ته راوړنې يوازې يوناني پاتې نه شوې، بلکې په افغاني بڼه يې وده وکړه او د يوه ګډ مدنيت څېره يې پيدا کړه، چې په لرغوني تاريخ کې د يونان – باختر مدنيت په نوم پېژندل کېږي.



### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په څو ډلو وويشل شي. هره ډله دې په دې اړه چې ولې مؤرخينو لرغوني افغانستان ته جلا جلا القاب او نومونه ورکړي، په خپل منځ کې خبرې اترې وکړي.



### پوښتنې

١ – مؤرخينو د لرغوني افغانستان لپاره کوم القاب ياد کړي؟
٢ – د يونان باختري د معمارۍ دوه اړخيزه اغيزه څه وه؟
٣ – د پڙې جوړولو يوناني هنر په افغانستان کې څه اغېزې درلودې؟ په اړه يې خپل معلومات وړاندې کړئ.



### له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې له خپلو مشرانو څخه د لرغونو ودانيو د ډول، جوړښت او شکل په اړه معلومات تر لاسه کړي او بيا دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

# د یونان - باختري پېر یو نامتو ښار(آی خانم)

په دې لوست کې به د آی خانم له لرغوني سیمې او له دغې سیمې څخه د ترلاسه شویو شواهدو او آثارو په اړه معلومات ترلاسه کوئ، چې د افغانستان د لرغوني تاریخ یوه برخه ګڼل کېږي.

د تخار ولایت په هغه سیمه کې چې د آمو او کوکچې سیندونه سره یوځای کیږي، دوه زره درې سوه کاله پخوا د یوه دفاعي ښار بنسټ کېښودل شو، چې وروسته بیا د یونان ــ باختري مدنیت په ستره بېلګه بدل شو. دا ښار په ۱۹۴٦ زېږدیز کال د فرانسوي لرغونپوهانو له خوا تر څېړنې لاندې ونیول شو.

آي خانم ازبکي ترکیبي نوم دی چې آی د میاشتې او خانم د میرمنې په معنا کارول کیږي.کله ناکله د سیمې اوسېدونکي د دې لرغوني ځای لپاره د ماه خانم نوم هم کاروي. که څه هم پوره څرګنده نه ده چې د دې لرغوني ښار لومړنی بنسټ ایښودونکی څوک و، خو د هغو شواهدو پر بنسټ چې له همدې سیمې څخه تر لاسه شوي او یا له ځینو تاریخي متونو څخه په ډاګه شوي، دا څرګنده وي چې د لومړي ځل لپاره یوناني مقدوني سکندر، د دې ښار بنسټ ایښی دی. یوناني نامتو جغرافیه پوه بطلیموس په خپلو آثارو کې د اکسوس سکندریې په نامه د یوې سیمې یادونه کړې، چې بې له شکه د آی خانم اوسنۍ سیمه ده.

څېړنو وښودله چې د ښار لومړنیو اوسیدونکو په پوره مهارت او دقت د ختیځ او لویدیځ د ودانیو جوړولو میتودونو تر منځ داسې یووالی راوستی چې ځانته خپل ځای لري. د بېلګې په توګه د ځینو ودانیو د ټینګښت په منظور تر اومو خښتو لاندې د پخو خښتو تهداب ایښودل شوی دی، د سکرو (ذ غال) څخه یوه ټاکلې لایه (طبقه) د لنده بل د مخنیوي په نیت جوړه شوې ده. د ودانیو د سینګار او ښکلا لپاره د اهکي او تباشیري ډبرو څخه کار اخیستل شوی دی.


د آی خانم د دوو سرستونیو انځورونه

د لرغونپوهانو پرله پسې څېړنو وښودله چې آی خانم د یوناني او باختري فرهنګ د ګډېدو ټاټوبی دی. دا لرغونی ښار د یوه لوی دیوال په وسیله اِحاطه شوی چې اوږدوالی یې ۱۵۰۰ متره او لوړوالی یې لس مترو ته رسېده. که له دې سېمې څخه تر لاسه شوې د ودانیو پاتې شوني او سپړل شوي وران کورونه د موقعیت او حالت له مخې وکتل شي، په وضاحت سره دا مطلب بیانوي چې د ښار په مرکزي برخه کې دفترونه او د هغو پر شا او خوا د اوسیدونکو کورونه جوړ شوي وو. د ښار منځنی برخه چې ۳۰۰ متره په ۳۰۰ متره کې ساحه لري او د یوه لوی انګړ په څېر څرګندېږي، په اصل کې د خپل وخت اداري مرکز او د چارواکو د واکمنی پلازمېنه وه. دا لوی انګړ چې اوږد والی یې ۱۳۰ متره او سور یې ۱۸۰ متره ته رسېده، په مستطیل ډول جوړ شوی چې په څلورو خواوو کې یې ۱۱۶ ستونونه درلودل. همداشان یو ستر تالار، چې اوږدوالی یې ۲۷ متره او سور یې ۱۷ متره ته رسېدلې دی، د دې لویې حویلی په منځ کې ښکاري.

د آی خانم په محوطه کې دننه د کورونو او خونو څخه زیات شمېر آثار او شواهد تر لاسه شوي چې د یونان- باختري مدنیت د برم نماینده ګي کوي.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې پر دوو ډلو و وېشل شي لومړۍ ډله دې د ای خانم نوم او بنسټ ایښودونکي او دوېمه ډله دې له ای خانم څخه د تر لاسه شوي ډبرلیک په اړه بحث وکړي.

### پوښتنې

۱- د آی خانم د موقعیت او د نامه د معنا په اړه څه معلومات لرئ؟ وړاندې یې کړئ.

۲- له آی خانم څخه د کوم پېر مسکوکات پیدا شوي دي؟ شرح یې کړئ.

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له منابعو څخه د تخار ولایت او آی خانم په اړه معلومات تر لاسه کړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# ساکان

په دې لوست کې به د افغانستان په سویلي سیمو لکه کندهار او سیستان کې د ساکانو د واکمنۍ په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

د یونان باختري دورې ورستی څواکمن امپراتور هیلوکلس و چې د یونان باختري پر ټولې امپراتورۍ یې واکمني چلېده. تر هغه وروسته سیمه ییز واکمنان منځته راغلل چې هر یوه یې پر یوې کوچنۍ سېمې حاکمیت درلود او د دې وړو واکمنیو دوران تر سل کاله پخوا تر میلاده پایښت وموند. دا مهال د لرغوني افغانستان په سویلي او سویل ختیځو سیمو کې د یوې نوې کورنۍ واکمني پیل شوه چې د ساکه یا ساکانو په نامه یادیږي.

د ساکانو په نوم یو څواکمن قوم د لرغوني افغانستان په سویلي برخو، لکه اراکوزیا (کندهار) او سکستان (سیستان ) په سیمو کې د خپلې واکمنۍ بنسټ کېښود. د دې نوي څواک لومړنی واکمن د هرایوس په نامه پېژندل شوی دی. نوموړي د یونان باختري امپراتورانو په څېر په خپل نامه مسکوکات جوړ کړل. په لنډه موده کې یې د خپل واک بریدونه تر تاکسیلا، سیند او بولان هاخوا سیمو پورې وغځول او د یونان باختري امپراتورۍ سویلي او سویل ختیځې سېمې یې تر خپل کنترول لاندې راوستلې.

تر هرایوس وروسته مایوس ۷۲ کاله تر میلاده وړاندې زمانه کې واک ته ورسېد. نوموړي پر خپلو مسکوکاتو د شهنشاه عنوان ولیکه. د نوموړي له مهاله یوه لیکنه چې د مس پر ټوټې لیکل شوې ده، لرغونپوهانو موندلې ده، په نوموړې لیکنه کې تر میلاده وړاندې ۷۸ کاله او د یوناني او خروشتي لیکدود بېلګې په څرګنده ښکاري. د مایوس اووه ډوله مسکوکات د لرغونپوهانو لاس ته رسېدلي دي.

تر مایوس وروسته د هغه دوه تنه میراث وړونکي پېژندل شوي دي، چې د دې دواړو واکمنۍ تر پنځوس کاله پخوا تر میلاده پایښت موندلی دی او بیا د نویو سیتي قومونو تر زور لاندې شوی او کوشاني امپراتورانو یې سېمې لاندې کړې او هغوی یې له واکه لېرې کړي دي.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په خپلو کې د ساکانو اړه خبرې وکړي او له یو بل څخه دې پوښتنې ترسره او ځوابونه دې هم په خپله سره و ارزوي.



## پوښتنې

۱ – د ساکانو د واکمنۍ لومړنی ټاټوبی چېرې و؟ په اړه یې معلومات ورکړئ.

۲ – د ساکانو لومړنی واکمن څه نومېده؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د ساکانو په اړه یو مطلب جوړ او په راتلونکي درسي ساعت کې دې نورو ته وړاندې کړي.

# د کوشانیانو امپراتوري

په دې لوست کې به د کوشاني امپراتورۍ د تاسیس، د مهمو کوشاني امپراتورانو او د رباطک د ډبر لیک په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

د کوشانیانو نوم د کوشان له کلمې اخیستل شوی دی. کوشان د یوچې قوم څخه و چې له آمو سیندڅخه را پورې وتل او په بلخ کې یې د یونان باختري واکمنې پای ته ورسوله. د کوشانیانو د



د کجولا کدفیسیس د واکمنۍ پر مهال د یوې سکې دوه مخه

د رباتک ډبرلیک یو انځور



واکمنۍ په پیل کې بلخ او درې ولایتونه سره یوځای شول او د یوې نوې امپراتورۍ بنسټ یې کېښود. هغه مهال څلورو سترو امپراتوریو د آسیا او اروپا پر زیاتو سیمو واکمنې درلوده، چې یوه یې د کوشانیانو امپراتوري وه.

د کوشاني امپراتورۍ مؤسس کجولاکدفیسیس دی. نوموړي هغه درې سېمه ییز واکمنان، چې د یونان باختري وروستۍ واکمني یې پای ته رسولې وه او د بلخ پر گاونډیو سیمو یې واک چلېده، یو په بل پسې تر خپل گورت لاندې راوستل. کجولاکدفیسیس پخوا تر دې چې د پاچاهۍ اعلان وکړي، د قوم مشر و. نوموړي په ۴۰ زېږدیز کال کې د پاچاهۍ اعلان وکړ او تر ۸۰ زېږدیز د آریانا پر زیاتو سیمو یې پر له پسې ۴۰ کاله واک وچلېد.د خپلې واکمنۍ په وروستیو کې یې د شهنشاه لقب ځان ته غوره کړ.

د کجولاکدفیسیس تر مړینې وروسته د هغه زوی ویما تکتو د واک پر گدۍ کېنېناست.تر ویما تکتو وروسته دده زوی ویماکد فیسیس له۱۰۵څخه تر ۱۲۷ زېږدیز پورې واکمن و. ویماکدفیسیس د کوشانیانو لومړنی ټولواک و چې د هېواد حدودو ته یې په سوېل کې دگنگا تر سیند پورې پراختیا ورکړه. ویماکدفیسیس د چین له هېواد سره دوستانه اړیکې درلودې. د روم امپراتور تراجان دربار ته یې یو سفیر ولېږه او له هغوی سره یې د سوداگرۍ او اقتصادي اړیکې ټینگې کړې. په دغه دوره کې د روم د سکې جوړولو هنري اغېز څرگند دی.


د کنشکا د یوې سکې د یو ه مخ انځور

د کوشاني امپراتورۍ په اړه تر ټولو نوي معلومات د رباطك له ډبرلیکه تر لاسه شوي دي.دا ډبرلیك نابېره د بغلان او تخار ولایتونو تر منځ په یوه سېمه کې چې رباطك نومېږي، لاس ته راغلی دی. له همدې امله یې د رباطك ډبرلیك په نامه یاد کړ. په دې ډبرلیك کې د کوشاني پېر په اړه داسي زيات نوي ټکي څرگند شوي دي، چې پخوا ناڅرگند وو. د بېلگې په



د کنشکا د ډبرینې مجسمې انځور

توګه پخوا داسي منل شوې وه چې د کدفیزسانو کورنی بېله او د کنشکا کورنی بیله وه. په داسې حال کې چې د رباطک ډبرلیک دا خیال ناسم وښووه او ثابته شوه چې دا ټوله یوه کورنی وه.

لوی کنشکا د ویما کدفیسیس زوی، د خپل پلار تر مړینې وروسته په۱۲۷زېږدیزکال واک ته ورسېد او تر ۱٤۷ زېږدیز پورې واکمنی وکړه.

کنشکا د لرغوني افغانستان په تاریخ کې د ډېر واک خاوند او نامتو امپراتور و. دده د امپراتورۍ حدود ختیځ خوا ته د هندوستان د بنارس او لوېدیځ خوا ته د پارتیانو امپراتورۍ او په شمال کې تر کاشغر او یارکند پورې رسېدلي وو. په ختیځ کې یې د چین او په لوېدیځ کې یې د روم له هېوادونو سره تجارتي اړیکې درلودې او د کوشانیانو پر مهال د ورېښمو نامتو لارې په ځانګړې توګه د کنشکا د واکمنی پر مـهال نړیوال شهرت وموند.

د خپلې امپراتورۍ د اداري لپاره یې دوه اداري مرکزونه درلودل. ژمنی یې پېښور او د دوبې یې بګرام ټاکلی و.

## د کوشاني امپراتورۍ د نړېدو لاملونه

د کوشاني امپراتورۍ د نړېدلو لاملونه لا په پوره توګه څرګند نه دي، خو د هند پراخو سیمو ته د کوشاني واکمنانو زیاته پاملرنه؛ د کوشاني امپراتورۍ لویدیځ لوري ته ساساني امپراتورۍ له یوې ورځې څخه بلې ته ځواکمنېدل د هېواد په شمال کې د یفتلي قبیلو بریدونه او سوبې؛ له مرکزي واکمنی

څخه د سیمه ییزو څواکونو سرغړاوی؛ د کوشاني امپراتورۍ په دننه کې د نویو څواکونو تر منځ یو پر بل پرله پسې بریدونه؛ هغه ځانګړې لاملونه ګڼل شوي دي چې د کوشاني امپراتورۍ د له منځه تللو زمینه یې برابره کړه.



### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د کوشانیانو د موسس، دویمه ډله دې د رباطک د ډبرلیک په اړه او دریمه ډله دې د نامتوکوشاني واکمنانو په اړه خپل معلومات نورو ټولګیوالو ته واوروي.



### پوښتنې

۱ – د کوشانیانو موسس څوک و؟ په اړه یې معلومات ورکړئ.

۲ – د رباطک ډبرلیک په اړه څه معلومات لرئ؟

۳ - د کوشاني امپراتورۍ تر ټولو څواکمن پاچا څوک و؟ توضیح یې کړئ.



### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د کوشاني دورې په اړه یو مطلب جوړ او په راتلونکي درسي ساعت کې دې نورو ته وړاندې کړي.

# بګرام د کوشاني سترې امپراتورۍ پلازمېنه

په دې لوست کې به د کوشانیانو د دوبنۍ پلازمېنې ( بګرام) په اړه د پوهانو د څېړنو په اړه معلومات ترلاسه کړئ.



د کوشاني لړۍ ستر امپراتور، کنشکا د بګرام سیمه خپله دوبنۍ پلازمېنه وټاکله. د لرغونپوهانو څېړنو دا مطلب په ډ اګه کړی چې د بګرام لرغوني سیمه پخوا تر هغه، چې ستر کنشکا یې خپل اداري مرکز وټاکي، مقدوني سکندر هلته د یوه دفاعي ښار بنسټ ایښی و. په هغو لیکل شویو آثارو کې چې له مقدوني سکندر څخه د خاطراتو په ډول پاتې دي، د دې سیمې (بګرام او کاپیسا) په اړه زیات په زړه پورې معلومات شتون لري. په دې خاطراتو کې د قفقاز سکندریې تر نامه لاندې لیکنې د همدې بګرام په اړه دي.

د کوشاني امپراتورۍ ټوله سیمه چې ختیځې سرحدي کرښې یې له خو قند او یارکند او نیپال څخه پیل کیدې، بیا تر لوېدیځو کرښو پورې چې تر اصفهان او سیستان پورې رسیدلې، همداشان شمالي سرحدونه یې له سیر دریا، خوارزم او سغد څخه پیل کیدې او په سوېل کې د منځني هند تر پوټالي پوترا، سري چامپا او هند سمندر پورې رسېدې، په اوړي کې د بګرام او په ژمي کې د پیښور له مرکزه اداره کېدې.

د بګرام په لرغونې سیمه کې د لومړي ځل لپاره په ۱۹۳۷ زېږدیز کال د فرانسوي لرغونپوهانو په



وسیله سروې او سپړنې پیل شوې. د فرانسوي لرغونپوه، گیرشمن په باور د بگرام د ښار جوړښت او د معمارۍ ډول داسي بریښي چې د یوناني ماهرینو په لاس جوړ شوی وي. نوموړي د بگرام ښار د جوړښت او معمارۍ د ځانگړتیاوو پر بنسټ له یونان سره پر تله کړی دی او د دې ښارونو تر منځ یې د ورته او گډو خصوصیاتو زیاتې بېلگې را څرگندې کړېدي.

د یادو شویو ښارونو د گډو خصوصیاتو شمېر زیات دی، خو د بېلگې په توگه د گیرشمن پام دې ټکو ته اوښتی، چې یاد شوي ښارونه د سیندونو په یوه تقاطع کې جوړ شوي دي؛ له یوڅې پلوه یې له دریو لورو څخه دفاع آسانه بریښي، څکه پر لوړو غونډیو او سیمو کې پرتې او ټوله سېمه ترې په آسانه ښکاري او ښه څارل کېدای شي.

له بگرام څخه زیاته اندازه طلایي مسکوکات، عاجي آثار، له لاکو څخه جوړې شوې صندوقچې، برونزي ارزښتمن وسایل، د یونان، روم، مصر، چین، هند او د نړۍ له نورو برخو څخه لږ پیدا کېدونکي او ځانگړي اثار د لرغونپوهانو په وسیله تر لاسه شول، دا آثار په پرله پسې توگه د افغانستان ملي موزیم ته ولېږدول شول. په ملي موزیم کې د بگرام په نامه یوه ځانگړې خونه پرانیستل شوه چې د څېړونکو او سیلانیانو د زیاتې پاملرنې وړ وه.



## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو و وېشل شي. لومړۍ ډله دې په بگرام کې د سپړنو، دویمه ډله دې د بگرام د خصوصیاتو او دریمه ډله دې له بگرام څخه د تر لاسه شویو آثار و په اړه خپل معلومات ټولگیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

١ – د بگرام سپړنې په کوم کال کې پیل شوې؟

٢ – د بگرام د جوړښت خصوصیات څه دي؟ په لنډه توگه یې توضیح کړئ.

٣ – په بگرام کې د تر لاسه شویو آثارو څو نومونه بیان کړئ.



## له ټولگي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د بگرام په اړه لازیات معلومات تر لاسه او خپلو ټولگیوالو ته دې وړاندې کړي.

# هډه د کوشاني امپراتورۍ کلتوري مرکز

په دې لوست کې به د کوشانیانو د کلتوري مرکز ( هډې) په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

پخوانیو مؤرخینو او پوهانو د لرغوني افغانستان ختیځې، سېمې چې د اوسني هند تر شمالي څنډو رسېدلې، د گندهارا په نامه یادې کړې دي. یوناني مؤرخ هیرودوت او سترابون د گندهارا سیمه په خپلو آثارو کې د گنداریس په نامه ثبت کړې ده، چې د کابل او کونړ تر منځ پرتې سیمې پکې شاملې دي. له دې سره سره چې د مقدوني سکندر په دوره کې د گندهارا نوم نه دی یاد شوی، خو د یونان باختري دورې حکمرانانو په آثارو کې، چې د لرغوني افغانستان پر ټولو حدودو واکمن وو، دا سیمه د گنداراتي ( Gandarati) او یا د گنداروا ( Gandarwa) په نامه یاده کړې ده او د ناگاهارا (ننگرهار) کوهش (کونړ) پورا شاپورا (پېښور) سراسواتي (سوات) سیمې پکې شاملې دي.





د بودا مجسمې

د گندهارا یو ستر فرهنگي مرکز اوسني جلال آباد ته څیرمه د هډې سیمه ده، چې په پخوانیو متونو کې د هیلو په نامه یاده شوې ده. هیلو د لرغونو بودایانو د تبرک ځای او د هغو د عبادت ستر ټاټوبی و.په هغو یونلیکونو کې چې له چیني زیارت کوونکو څخه را پاتې دي، د دې سیمې په هکله په زړه پورې او ارزښتمن معلومات شته. فاهیان لومړنی چیني زایر و چې په ۴۲۰ زېږدیز کال یې هډه ولیده. له هغه وروسته سوینگ یون په ۵۲۰ میلادي کال له هډه څخه لیدنه وکړه او په دې اړه یې زیات مطالب ثبت کړي دي.

دا پوښتنه چې، هډه ولې د کوشاني امپراتورۍ کلتوري پلازمېنه گڼل شوې ده، د هغو لرغونپوهانو



او ښېرونکو د پرله پسې سپړنو او څېړنو پر پایلو باور کوو، چې د هڼې په اړه یې تر سره کړي دي. تر ټولو لومړی جوت لامل د مناسبو شرایطو او اړینو امکاناتو شتون و، چې د کنشکا د امپراتورۍ پر مهال برابرشو؛ دویم لامل په بودیزم کې د بدلون او نوښت منځ ته را تلل په ګوته شوي دي. دریم لامل یې د ګندهارایانو خلاقیت او فکري ظرافت یادکړي دی چې په ټوله بودایي نړۍ کې یې د لومړي ځل لپاره د بودا د مجسمو د جوړېدو نوښت وکړ.

د فرانسوي لرغونپېژندونکي فوشه په قول په ګندهارا کې د بودا مجسمه دګندهارایانو له خوا جوړه شوې وه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو و وېشل شي. لومړۍ ډله دې د هډې د نامه په اړه، دویمه ډله دې د هډې لپاره د کلتوري پلازمېنې د غوره کولو لاملونه او دریمه ډله دې د بودا مجسمې د جوړېدلو په اړه خپل معلومات نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱ – د هډې تاریخ په لنډه توګه توضیح کړئ.

۲ – هډه ولې د کوشاني امپراتورۍ فرهنګي پلازمېنه ګڼل کیږي؟ خپل معلومات وړاندې کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د هډې په اړه لازیات معلومات تر لاسه او خپلو ټولګیوالو ته دې ولولي.

# باميان د کوشاني امپراتورۍ عقيدتي مرکز

په دې لوست کې به له ګريکو بوديک تمدن او د باميانو د ارزښت په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

دګريکو بوديک د تمدن ريښې په لرغوني افغانستان کې شنې شوې، وده يې وکړه او بيا نورو ګاوندېيو سيمو او هېوادونو ته ورسېدې. تر هغه چې ستر کنشکا لا بودايي کيش نه و منلی، نومورې مذهب د يوې مړ ژواندې عقيدې په توګه د هند په محدوده کې پاتې و. همدا ډول له لرغوني يونان څخه راغلو هنرمندانو د خپلو هنرونو او ختيځو خيالاتو د يو ځايوالي په لارکې ټاکلې ستونزې درلودې. دکوشانيانو د واکمنۍ پر مهال د افغاني هنرمندانو او ماهرينو په وسيله دا ستونزې لېرې شوې او د يوناني هنر او هندي ارزښتونو تر منځ د يووالي زمينه رامنځته شوه او په پايله کې دګريکو بوديک په نامه يو ستر تاريخي تمدن منځته راغی.





گریکو بودیک تمدن له یوې خوا د افغانستان پر لرغونې ټولنه هر اړخیزې اغیزې وښندلې،او له بل پلوه دامدنیت د جاپان، کوریا او چین پورې، د سریلانکا او هندڅخه بیا تر سیر دریا او تاجکستان پورې ټولې سیمې تر خپلې اغیزې لاندې راوستې وې. د نړۍ له بیلا بیلو سیمو څخه به د عقیدتي مراسمو د پر ځای کولو په نیت زیات شمیر راهبانو،زایرینو او سیلانیانو به په افغانستان کي د ودان شویو بو دایي عبادت ځایونو په ځانگړي ډول د بامیانو لرغوني ځای ته د لیدو کتو په نیت سفرونه کول.

د بامیانو په اړه تر ټولو پخواني معلومات د چیني زیارت کوونکو له خوا لیکل شوي. فاهیان تر ټولو پخوانی چیني زیارت کوونکی دی چې د بامیانو په اړه لیکنې لري. نوموړي په ٤٠٠ زیږدیز کال د بامیانو سیمه لیدلې او د سترو مجسمو په اړه یې ارزښتمن معلومات لیکلي دي. نوموړی لیکي: د بامیانو دره شنه او پاکه ده،د سترو مجسمو شا او خوا هره ورځ وینځل کیږي،زیات شمیر مذهبي مدرسې شته، هره ورځ زیارت کوونکي او سوداگران دې سیمې ته د تلو راتلو په حال کې دي. د راهبانو لپاره ځانگړې صومعې جوړې شوي او د ښاریو لپاره بیل ټاټوبي شته.

تر فاهیان وروسته هیونتسنگ د بامیانو سیمه لیدلې او په خپلو یونلیکونو کې یې زیات ارزښتمن مطالب را ټول کړي او لیکلي دي. د هغه په وینا په بامیانو کې تر لس زیاتې خانقاوې وې، چې څه ناڅه زرتنه واعظین پکې د بودایي مذهب تبلیغ ته ګومارل شوي وو. په لسګونو مدرسې موجودې وې، چې هرې مدرسې لږ تر لږه زرتنه زده کوونکي درلودل. هیونتسنګ په بامیانو کې ورې او لویې مجسمې لیدلي، خو یوه داسې مجسمه یې هم لیدلې چې هر سهار به د لمر په وړانګو کې زرینه ځلیده او داسې برېښېده، لکه چې ټوله له سرو زرو څخه جوړه شوې وي.

په افغانستان کې د رسمي سپړنو او څېړنو له پیل را وروسته په ۱۹۲۲ میلادي کال د بامیانو ستر ې مجسمې لومړی د فرانسوي لرغونپوه الفرد فوشه له خوا په ۱۹۲۲ میلادي کال وڅېړل شوې. نوموړي په خپلو څېړنو کې څرګنده کړه، چې په څلورمه او پنځمه میلادي پېړۍ کې د بودا دوې سترې مجسمې، چې یوه د صلصال او بله د شامامه په نامه یادېږي، جوړې شوې دي. د دې سترو مجسمو په اړه دعلمي سپړنو او څېړنو کار د فرانسوي لرغونپوهانو په وسیله پیل او بیا وروسته د نورو هېوادونو لرغونپوهانو هم د دې مجسمو په اړه څېړنې او لیکنې کړې دي، چې د بېلګې په توګه د هندي، جاپاني، چیني او افغاني لرغونپوهانو یادونه کولای شو.

په بامیانو کې دوې سترې مجسمې په ۲۰۰۱ میلادي کال د هغه وخت د واکمن رژیم پر مهال له منځه ولاړې. د بامیانو لرغونې سیمه د نوموړو دوو مجسمو له ړنګېدو دوه کاله وروسته په ۲۰۰۳ میلادي کال د ملګرو ملتونو د یونسکو ادارې اړوند نړیوالو کلتوري میراثونو په لړ کې ومنل شوه .



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په درېیو ډلو و وېشل شي، لومړۍ ډله دې د بامیانو په اړه د چینایي زیارت کوونکو، دوېمه ډله دې د اروپایي پوهانو د معلوماتو او درېیمه ډله دې په افغانستان کې د رسمي سپړنو وروسته د بامیانو په اړه خپل معلومات ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱– چینایي زیارت کوونکو د بامیانو په اړه په خپلو یونلیکونو کې کوم معلومات لیکلي دي؟ توضیح یې کړئ.

۲– د بامیانو په اړه د اروپایي پوهانو لومړني معلومات څه وو؟ بیان یې کړئ.

۳– له رسمي سپړنو څخه وروسته د بامیانو په اړه څه پوهېږئ؟ خپل معلومات وړاندې کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د بامیانو د ولایت په اړه معلومات راټول او بیا دې په ټولګي کې نورو ته ولولي.

# کیداریان یا کوچني کوشانیان

په دې لوست کې به د کیداریانو د واکمنۍ او په بلخ کې د کوشانیانو په امپراتورۍ کې د سیمه ییزو حکومتونو د پیل او د هغوی د سیاسي وضعې په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

د واسو دیوا تر مړینې وروسته د کوشاني امپراتورۍ په دننه کې د سیمه ییزو واکمنیو دوران پیل شو. د کوشاني لویې امپراتورۍ د کنترول او اداري ځانګړی مرکز له منځه ولاړ سیمه ییزو واکمنانو د خپلو ګټو او هیلو پر بنسټ واک چلاوه. د کوشاني امپراتورۍ په لویدیځو څنډو کې سیمه ییزو خپلسرو واکمنانو له نوې را ټوکېدلې ساساني امپراتورۍ سره اړیکې جوړې کړې. په حقیقت کې دا اړیکې د سیمه ییزو واکمنانو د ځان ساتلو هڅه وه چې څه ناڅه نیمه پېړۍ یې ونیوله.

ساساني ځواک د ټول افغانستان په لاندې کولو بریالی نشو، کله به یې د پخواني افغانستان پر یوه سیمه او کله پر بله سیمه له محلي واکمنانو سره په جوړ جاړې او یا په زور لاندې کولو سره د خپلې امپراتورۍ ریښې ځغلولې، خو په بلخ کې د کیداریانو واک ته رسېدل، او د کېداري واکمنانو له خوا د خپلواکی لرلو روحیه د دې سبب شوه چې له ساسانیانو سره د پر له پسې جګړو لړۍ اوږده او د مقابلې لوری زور واخلي. له همدې امله د کیداریانو د واکمنۍ زیات وخت له ساسانیانو سره په جګړو کې تېر شو.

کیداریان د کوشاني واکمنۍ پاتې شوني دي. دکوشاني کورنۍ اړوند یو تن شهزاده، چې کیدار نومېده، په بلخ کې د چارو واګې تر لاسه کړې. په بلخ کې د کیدار د واکمنۍ ډېره موده نه وه تیره شوې چې په شمال کې د یفتلي قبیلو تر پرله پسې بریدونو لاندې راغلل. له همدې امله کیدار د هندوکش لویدیځو سیمو ته خپل مرکز ولېږداوه، او له جګړې پرته د کابل او ګندهارا پرسیمو واکمن شو. د کېدار واکمني د وړو کوشانیانو د پیل مهال ګڼل کېږي چې له ۳۲۵ زېږدیز کال سره سمون لري.

د کېداریانو او یا کابل شاهانو د دورې په اړه زیات معلومات یا د مسکوکاتو او یا چیني لیکنو پر بنسټ تر دې مهاله را رسېدلي دي. له کیداري مسکوکاتو څخه داسې بریښي چې د کېداریانو او ساسا نیانو تر منځ پر له پسې جګړې او یو پر بل زیات یرغلونه شوي دي. د کېدارا د واکمنۍ پر مهال له

ساسانیانو سره مخالفت او جګړو پوره اته کاله دوام درلود. د کیداریانو او سا سا نیانو تر منځ د جګړو په اړه د ارمنستان یو مؤرخ فوستس لیکلي چې کیداریانو او ساسانیانو په ۳۶۷ او ۳۶۸ زیږدیز کې په خپل منځ کې خورا سخته جګړه وکړه او په پایله کې یې ساسانیانو ته کلکه ماته ورکړه.

د کیدار د واکمنۍ پر مهال په کابل کې د هغه د زوی کنګاس یادونه هم شوې ده. نوموړي د خپل پلار د واکمنۍ پرمهال د یو شمېرسیمو اداره پر غاړه درلوده، د کېدارا تر مړینې وروسته د هغه یو بل زوی چې پیرو نومېده، واک ته ورسېده. نوموړي د ۳۷۵ تر ۳۸۰ زیږدیز کلونو پورې د واک پر ګدۍ کېناست. د نوموړي د واکمنۍ له سپینو زرو څخه یو شمېر مسکوکات ترلاسه شوي دي.

تر پیرو وروسته بهرام په نامه د کابل شاهانو یا کیداریانو یو بل واکمن د قدرت واګې په لاس کې ونیولې. تر بهرام وروسته د هندوکش سهیلي سیمې د یفتلیانو تر بریدونو لاندې راغلې او د کیداریانو او کوچني کوشانیانو واکمني یې له منځه یووړه.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو و وېشل شي، لومړۍ ډله دې د کیداریانو د لومړني واکمن په اړه او دویمه ډله دې د کیداریانو د نورو واکمنانو په اړه خپل معلومات ټولګیوالو ته واوروي.

## پوښتنې

۱ – د کیداریانو لومړنی واکمن څوک و؟

۲ – د کیداریانو او ساسانیانو تر منځ د اړیکو په اړه څه معلومات لرئ؟

۳ – د کیداریانو وروستي واکمنان څوک وو؟ په اړه یې خپل معلومات وړاندې کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د ښوونځي له کتاب پرته له نورو کتابونو څخه د کیداریانو په اړه معلومات راټول او په ټولګي کې دې ولولي.

# د یفتلیانو امپراتوري

په دې لوست کې به د یفتلي امپراتورۍ د جوړېدو، د هغوی د مهمو امپراتورانو او د دې امپراتورۍ له سقوط سره آشنا شئ.

انګلیسي مؤرخ سر اولف کارو په دې باور دی چې یفتلیان له منځنۍ آسیا څخه د سویل په لور را خوځیدلي او لومړنۍ اداره یې ۴۲۵ زېږدیز کال په تخار کې جوړه کړه. تخار او د هندوکش یو شمېر نورې سیمې یې له کیداریانو یا کوچني کوشانیانو څخه ونیولې او له ساسانیانو سره تر درنو جګړو وروسته د خپلو سیمو دفاع ته اړ شول. دې قبیلو زیات شمېر بودايي ودانۍ ړنګې او د لمر نمانځنې عبادت ځایونه یې ودان پرېښودل.

د یفتلیانو او ساسانیانو تر منځ د جګړو لړۍ هغه مهال ډېرې زیاتې او درنې وې چې لا یفتلي واکمني د هندوکش سویلي لورې ته نه وه رسېدلې. د یفتلي واکمنانو او ساسانیانو تر منځ لومړنۍ جګړه په ۴۲۷ زېږدیز کال پېښه شوه. ساساني بهرام ګور پر مرو او مرغاب برید وکړ خو یفتلي واکمن خاقان د خپلې سیمې کلکه دفاع وکړه او ساساني ځواکونه یې له ماتې سره مخامخ کړل. په ۴۳۸ زېږدیز کال د بهرام زوی دویم یزدګرد بیا پر یفتلي خاورې برید وکړ. نوموړی هم له کلکې ماتې سره مخ شو. تر هغه وروسته لومړي فیروز یو ځل بیا له یفتلي واکمنانو سره د جګړې لاره ونیوله، خو دا ځل یفتلي واکمن اخشنور ساساني فیروز ته داسې ماتې ورکړه چې فیروز د خپل ژوند او سیاسي پایښت لپاره اړشو چې خپل زوی قباد، اخشنور ته وسپاري او د دوو کلونو لپاره یې یفتلي واکمن ته په زیاتو مالیو ورکولو ځان خلاص کړ.

اخشنور له پیروز سره تر جګړې وروسته وکړای شول د پخوانۍ آریانا یووالی بیا تامین کړي. د هندوکش سویلي سیمې یې تر خپل واک لاندې راوستې. زابل یې د خپل یوه مرکز په توګه وټاکه او

له هماغه ځایه یې د نورو سیمو د نیولو پلانونه جوړ کړ. دا مهال د ساساني واکمنانو تر منځ شخړې او جګړې زیاتې شوې وې. آن تر دې چې د فیروز ورور، ولاش د خپل یوه وزیر په وسیله له واکه لرې او ړوند شو. د ساساني واکمنانو په منځ کې تر دې اړودوړ وروسته د فیروز زوی، قباد چې له اخشنور سره تر ډېرې مودې یرغمل پاتې و، د ساسانیانو واکمن شو. قباد له یفتلي واکمنانو سره د دوستۍ لاره ونیوله. په دې حالاتو کې د یفتلي واکمنانو پام د هند لوري ته وګرځېد.

اخشنور څه نا څه نیمه پېړۍ واکمني وکړه. ساساني واکمنان لکه ولاش او قباد پر ځانونو د هغه باج منلی و. په هند کې یې د ګوپتا کورنۍ وځپله تر ٤٦٠ میلادي کال پورې یې هغه تر ٤٠ زیات ولایتونه تر خپل واک لاندې راوستل. تر اخشنور وروسته د هغه زوی تورمنه (توریالی) واک ته ورسېد. تورمنه په خپلو مسکوکاتو کې ځان د زابل امپراتور تورمنه یاد کړی دی. تورمنه خپله واکمنۍ د هند تر مرکزي سیمو ورسوله او په ٥٠٢ میلادي کال کې مړ شو. د تورمنه تر مړینې وروسته د هغه زوی میهرا کولا ( میهرګل ) واک ته ورسېد.

میهرا کولا د خپلې واکمنۍ د پراختیا لپاره پر هند بریدونه وکړل او د ګوپتا کورنۍ یې باج ورکولو ته اړه کړه. د بنګال له واکمنانو سره یې جګړې وکړې او زیات شمېر بودایي مرکزونه یې وران کړل. میهراکولا په ٥٤٢ زېږدیز کال کې مړ شو او د ده له مړیني سره سم د یفتلي امپراتورۍ زوال پیل شو.هند او بنګال بېرته د خپلو واکمنانو لاس ته ورغلل او په افغانستان کې هم د یو شمېر پخوانیو سیمه ییزو واکمنانو لپاره د بیا واکمن کېدو زمینه برابره شوه.

د یفتلي امپراتورۍ تر نړېدو وروسته په افغانستان کې د کوشان – یفتلي په نامه د سیمه ییزو واکمنانو بله دوره پیل شوه. په دې دوره کې د کابل شاهانو، رتبیل شاهانو، د بامیان د شیرانو ، د تګین شاهانو نومونه




د زابلي یفتلیانو د واکمنۍ پر مهال د افغانستان پولې

د یادولو وړ دي چې د هېواد پر بېلا بېلو سیمو واکمن شول. د دې دورې ځانګړنې په افغانستان کې د سیمه ییزو واکمنانو حاکمیت  او هغه پر له پسې مقاومتونه وو چې د افغانستان په بېلا بېلو سیمو کې د اسلامي ځواکونو په وړاندې تر سره شوي دي. د زماني واټن له مخې دا دوره په عمده توګه له شپږمې میلادي پېړۍ څخه بیا د اتمې میلادي پېړۍ تر وروستیو کلونو پورې دوام مومي چې په افغانستان کې د خپلواکو اسلامي حکومتونو له پیل سره سمون خوري.



د يفتلي واکمنانو د مسکوکاتو يو انځور



## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د يفتلي واکمنانو په اړه د انګليسي مؤرخ اولف کارو نظريه بيان کړي او دويمه ډله دې د اخشنور د واکمنۍ په اړه خپل معلومات ټولګيوالو ته و وايي.



## پوښتنې

۱ – يفتليان له کوم ځايه څخه راغلل ؟ معلومات وړاندې کړئ.

۲ – د يفتلي واکمن اخشنور په اړه څه پوهېږئ بيان يې کړئ.

۳ – د تورمنه په اړه څه معلومات لرئ؟



## له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د يفتليانو په اړه يو مطلب جوړ او په ټولګي کې يې وړاندې کړي.

# د اسلام د ظهور پر مهال د افغانستان وضع

په دې لوست کې به له اسلام څخه د مخه د افغانستان له سیاسي، ټولنیزې او کلتوري وضعې سره پېژندګلوي پیداکوئ



د بلخ د نهه ګنبدي جومات انځور چې په افغانستان کې لومړی جومات بلل کېږي

د شپږمې میلادي پېړۍ په وروستیو او د اوومې میلادي پېړۍ په لومړیو کې افغانستان د ځایي امیرانو او د کوشاني او یفتلي ځینو پاچو واکمنو له خوا اداره کېده. د دې لپاره چې د اسلام د ظهور پر مهال مو د افغانستان د وضعې او حالت ټولیز انځور اخیستی وي، باید خپل دغه بحث په لنډ ډول په دوو عنوانو کې تر مطالعې او څېړنې لاندې ونیسو.

## الف- سیاسي وضعه

افغانستان له سیاسي پلوه د اسلام د سپېڅلي دین د څرګندېدو پر مهال ګډوډ حالت درلود. له یوې خوا په ختیځ کې د ګوپتا او په لویدیځ کې د ساسانیانو دوو ځواکمنو امپراتوریو شتون او له بلې خوا د مرکزي غښتلې اداري نشتوالي د سیمه ییزو حکومتونو جوړېدو ته زمینه چمتو کړه.

د چین وتلي سیلاني هیونتسنګ چې په اوومې میلادي پېړۍ کې یې افغانستان ته سفر کړی و او د افغانستان د وضعې او حالاتو په اړه یې خورا زیات مطالب کښلي د هغه مهال د سیاسي وضعې په اړه لیکي: ((دغه هېواد په بېلابېلو اداري واحدونو وېشل شوی او هره جغرافیایي حوزه یې د یوه ځانګړي پاچا له خوا اداره کېږي.))

زابلي رتبیل شاهان له مشهورو کورنیو څخه و چې له کابل شاهانو سره یې ښې اړیکې درلودې او په غزني او زابل یې واکمني کوله. همدارنګه نورو کورنیو لکه د بامیان د شیرانو او په کابل کې کابل شاهانو واکمني درلوده. همداسې ډېرو سیمه ییزو حکومتونو د افغانستان په ګوټ ګوټ کې حاکمیت درلود. پدې توګه قوي مرکزي حکومت شتون نه درلود.

## ب- مذهبي او ټولنيزه وضعه

د دغه ټاټوبي وګړو په ديني لحاظ په جلا جلا دينونو عقيدې درلودې. زردشتي کيش له بلخه او بودايي آيين چې له هنده يې سرچينې اخيستې وې، په افغانستان کې خپل لارويان درلودل. پر دې سربېره ځينو نورو دينونو هم د مسلمانو اعرابو مبلغينو د راتګ تر مهاله په دې هېواد کې شتون درلود. د ځايي حکومتونو خپلواک وضعيت ښايي په دغه خاوره کې د بېلابېلو دينونو عمده دليل وي.

د افغانستان د خلکو د هاغه وخت کلتور د ويدي او اوستايي تهذيب لويه برخه تشکيلوله. له همدې امله هيڅ عادي او وروسته پاتې کلتورو نشو کړای چې پر دغو خلکو لاس برى پيدا کړي. هغه يو شمېر فرهنګونه او تهذيبونه چې نوي به منځته راتلل او يا به پکې کوم نوښت رامنځته کېده، د نوموړې سېمې خلکو به له خپل اصلي فرهنګ سره ګډاوه او په يوه نوې بڼه به يې نړيوالو ته وړاندې کاوه. د دې مدعا د ثبوت لپاره د بېلګې په توګه د يونان- باختري او يونان- بودايي مدنيتونه يادولی شو چې د دې خاورې د وګړو نوښتونه بلل کېږي.

لنډه دا چې د اوومې ميلادي پېړۍ په وروستيو کې د ساسانيانو وروستی پاچا، دريم يزدګرد د احنف بن قيس د اسلامي سرلښکر له لاسه په ٦٥١ زېږديز کې ماته وخوړه او ورپسې يې اسلامي سرلښکر د افغانستان په لوري راغی.د هجري قمري په٢٢ کال د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه خلافت په مهال د اسلام لښکر افغانستان ته راورسيدو په بېلابېلو وختونو کې د مسلمانانو حملو دوام پيدا کړ او د دريم خليفه حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت پر مهال د عبدالله بن عامر تر مشرۍ لاندې اسلامي لښکرې د کابل تر پولو ورسېدې او په همدې ترتيب د ځايي حکومتونو د سقوط او پاشلتيا لپاره زمينه برابره شوه. د مسلمانانو سوبمنو او فاتحو عسکرو د اسلامي حکومت د ټينګښت او ثبات په موخه دوه پېړۍ پرله پسې جګړې ترسره کړې، تر دې چې د اسلامي خپلواکه دولتونو د راڅرګنديدو لپاره زمينه مساعده شوه.

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې به د اسلام د ظهور پر مهال د افغانستان سياسي وضعيت بيان کړي او دويمه ډله دې به په همدغه مهال کې د افغانستان ديني او اجتماعي وضعې په اړه نورو ټولګيوالو ته معلومات ورکړي.

### پوښتنې

١-د اسلام د ظهور پر مهال د افغانستان سياسي وضعيت څرنګه و؟ شرح يې کړئ.

٢-د اسلام د ظهور پر مهال د افغانستان مذهبي او اجتماعي وضعه څرنګه وه؟ واضحه يې کړئ.

٣-د ساساني دورې وروستي ............... نومي پاچا د احنف بن قيس په وسيله په کال ...... زېږديز کې ماتې وخوړه.

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

افغانستان ته د اسلام د سپيڅلي دين د راتګ د څرنګوالي په اړه يو مطلب جوړ او په راتلونکي درسي ساعت کې دې هغه په ټولګي کې وړاندې کړي.

# دريم څپرکی
# د نړۍ لرغوني تمدنونه

دا څپرکی لاندې لوستونه لري:

- د تمدن د منځته راتلو څرنګوالی او د هغه ځانګړتیاوې
- د بین النهرین تمدن
- د بین النهرین تمدن او کلتور
- د مصر تمدن
- د مصر تمدن او کلتور
- د فارس تمدن
- د هند تمدن
- د چین تمدن
- د یونان تمدن
- د روم تمدن
- د امریکا تمدنونه

# د څپرکي موخې

هیله کېږي چې د دې څپرکي په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي:

- د بین النهرین، مصر، فارس، هند، چین، یونان، روم او امریکا له تمدنونو سره به آشنا شي.
- د یاد شوو تمدنونو علمي او کلتوري لاسته راوړنې به بیان کړای شي.
- له تاریخي نقشو څخه د ګټې اخیستنې وړتیا به پیدا کړي.
- د نړۍ د لرغونو تمدنونو په ارزښت به پوه شي.
- د نړۍ د لرغونو تمدنونو او د هغو له لاسته راوړنو سره به لیوالتیا پیدا کړي.

# د تمدن د رامنځته کېدو څرنګوالی او ځانګړنې

په دې لوست کې به د تمدن د رامنځته کېدو د څرنګوالي، د پوهانو د نظرياتو او د مدنيتونو د ځانګړتياوو په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

تمدن عربي کلمه ده چې د ښاري ژوند معنا لري. د تمدن د رامنځته کېدو د څرنګوالي په اړه د مؤرخينو او ټولنپوهانو له لوري بېلابېل نظريات وړاندې شوي دي. د اسلامي نړۍ نامتو مؤرخ ابن خلدون په دې باور دی چې تمدن د بدوي کلتورونو پر بنسټ رامنځ ته کېږي او بېرته د همدې بدوي کلتورونو تر بريدونو لاندې له منځه ځي او دا لړۍ په دايروي شکل پايښت مومي. انګليسي مؤرخ ارنولد تاينبي د ننګونو (چلنجونو) او غبرګون نظريه د تمدن د رامنځته کېدو لامل ګڼي. د تاينبي په باور يو په بل پسې ننګونو او ستونزو انسانان هڅو ته اړ کړي او دا هڅې په مدنيت بدلې شوې دي.

د تمدن د پايښت په اړه يوشمېر مؤرخين په دې باور دي چې هغه يوه واحده منشا لري او له يوې لرغونې حوزې څخه پيل شوی دی.

ګوردن چايلد يو د هغو مؤرخينو له ډلې څخه دی چې ټول لرغوني مدنيتونه له يوه ټاټوبي څخه را وتلي ګڼي. نوموړي د مصر، بين النهرين او سند تمدنونه وڅېړل او د دې تمدنونو ترمنځ ورته ټکي يې رابرسېره کړل. په پايله کې يې د ټولو تمدنونو منشا له مصر څخه راپيل شوې وبلله. د مؤرخينو دويمه ډله په دې باور ده چې د تمدنونو منشا يوه نه ده او د نړۍ تمدنونو له يوه تمدن څخه پراختيا نه ده موندلې، بلکې د هرې سيمې د چاپېريال او د هغه د امکاناتو په محدوده کې ځانګړی تمدن منځته راغلی او وده يې کړې ده.

## د لومړنيو تمدنونو ځانګړنې

**۱- ښاري اوښتون (انقلاب)**: له ميلاده کابو ۳۰۰۰ کاله وړاندې انسانان د ښارونو په جوړولو بريالي شول. له مالدارۍ څخه د زراعت جلاوالي په خپل وارسره د ښارونو د رامنځ ته کېدو زمينه برابره کړه. ښارونه د ديني، فرهنګي، ټولنيز، اقتصادي او سياسي بدلونونو مرکزونه شول. د بشريت په تاريخ کې دا پرمختګ د ښاري انقلاب په نامه بلل شوی دی.

**۲-سیاسي او نظامي جوړښتونه**: د ښاري ژوند له پیل سره سم حکومتي ادارې رامنځته شوې چې ټولنې ته وده ورکړي او د هغوی غوښتنو ته ځواب ووايي. د سیاسي قدرت د ساتلو او د نورو سیمو د نیولو په موخه نظامي ځواکونه هم رامنځته شول.

**۳- د اقتصادي ځواک پر بنسټ نوی ټولنیز جوړښت**: پاچاهان، لوړ پوړي روحانیون، سیاسي مشران او پوځیان د واک او قدرت په سر کې پاتې او د ټولنې د لوړې طبقې وګړي شول. کروندګرو او صنعتکارانو په دویم پوړکې او غلامانو د ټولنې په ټیټ پوړ کې ځای وموند.

**۴- دیني جوړښتونه**: په لومړیو مدنیتونو کې دیني تشکیلاتو ځانګړی ارزښت درلود. د توحید له لارې څخه د پخوانیو ټولنو د یو شمېر خلکو په اوښتو او د خلکو د باور او تلقین لپاره د دیني جوړښتونو له لارې د شرک او خرافاتو بهیر پیل شو. د ټولنې د بریالیتوب لپاره یې د ارباب الانواعو کاذب رول او اهمیت ته غاړه کېښوده. په همدې ډول یې د لاسته راغلي مدنیت او سیاسي جوړښت پراختیا ته هڅه وکړه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د تمدن د رامنځته کېدو د څرنګوالي په اړه او دویمه ډله دې د تمدن د ځانګړنو په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- د تمدن د رامنځته کېدو په اړه د ارنولد تایني نظر څه و؟

۲- د تمدنونو د منشا په اړه د پوهانو نظریات څرګند کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د تمدن د بېلګو په اړه خپل معلومات راټول او ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

# د بين النهرين تمدن

په دې لوست کې به د بين النهرين د تمدن له لرغونتوب، لرغونو سيمو او سياسي وضعې سره آشنا شئ.

هغه سيمه، چې د دوو سيندونو (دجلې او فرات) تر منځ پرته ده، د بين النهرين په نامه يادېږي.
په دغه سيمه کې د نړۍ تر ټولو لرغونی تمدن رامنځته شوی چې مؤرخين يې د رامنځته کېدو لامل د دجلې او فرات ښېرازه ځنډې ګڼي. د لرغونپوهانو په اند د نوح عليه السلام توپان په همدې سيمه کې پېښ شوی دی. د بين النهرين تر ټولو لرغونی ځای د تل حسونا په نامه يادېږي، چې په پنځه زره مخزېږد کې يې يو لوی کلی درلود چې وګړي يې په کرنه بوخت وو،خو د وګړو په ډېرېدو سره د ۵۰۰۰ - ۴۰۰۰ مخزېږد د مخه کلونو تر منځ بين النهرين ته ولېږدېدل او هلته يې د يو تمدن بنسټ کېښود چې د سومريانو د تمدن په نامه يادېږي.

د سومريانو په استوګنځي (سومر) کې ګڼ شمېر ښارونه رامنځته شول چې اور، اوروک، کيش، لاګاشس، لارسا او وينپور يې د يادونې وړ دي. دغه ښارونه هر يو په خپلواکه توګه اداره کېدل. له همدې امله ښاري دولتونه يا ښاري هېوادونه بلل کېدل. د دغو ښارونو په منځ کې عبادت ځايونو شتون درلود چې د ښار د ساتنې د خدای مجسمې پکې ساتل شوې وې.

## د بين النهرين سياسي وضع

د سومرښاري دولتونه د کاهنانو له لوري، چې مشران يې انسي بلل کېدل، په خپلواکه توګه اداره کېدل او مرکزي واکمني يې نه درلوده. د سومر له پخوانيو واکمنانو څخه يو هم ايتن و چې پر ټولو سومري دولتونو يې ولکه درلوده.

له ۲٤۰۰ کاله د ميلاد څخه وړاندې اکدي اقوامو سومري واکمن (ګيل ګميش)له منځه يووړ او واک يې تر لاسه کړ. د دغې لړۍ لومړنی واکمن سارګون و چې د فارس له خليج څخه د بين النهرين تر شمال پورې يې خپل قلمرو ته پراختيا ورکړه. له همدې امله د بين النهرين په سياسي تاريخ کې ډېر شهرت لري او د بين النهرين لومړی ستروک ګڼل کېږي. دغه لړۍ له دوو پېړيو واکمنۍ څخه وروسته

د شمال ختیځ د یوه قوم له لورې  چې ګوتي نومېده له منځه ولاړه.

ګوتیانو یوه پېړۍ واکمني وکړه او په پای کې د سومریانو له لوري له منځه ولاړل. څه مهال وروسته سومر او اکدي سره یو موټي او د اور واکمني یې رامنځته کړه.دغه مهال اعلامیانو چې د فارس په سویل او لوېدیځ یې واکمني درلوده او تازه یې د اور واکمنی ته غاړه ایښې وه، یو ځل بیا خپلواکي تر لاسه کړه. د سومریانو په وړاندې یې جګړې پیل کړې او په ۲۰۰۷ کال کې د هغوی سیاسي ځواک ته د پای ټکی کېښود.

د اور د واکمنۍ له منځه تلو وروسته په سویلي بین النهرین کې جګړې پیل شوې. په پایله کې د بابل لړۍ، چې په ۱۹ مخزېږده پېړۍ کې یې بنسټ اېښودل شوی و، د دغه هېواد ډېری برخې سره یو موټی کړې او د بابلیانو په نامه یې ستر‌واکي (امپراتوري) رامنځته کړه.


د حمورابي د یوې مجسمې څو انځورونه

د بابلیانو د لرغونې ستر‌واکۍ پېر، چې درې پېړۍ یې دوام وکړ، د نړۍ د تاریخ د پام وړ څپرکی ګڼل کېږي. د دغې لړۍ نومیالی واکمن حمورابي و چې د بین النهرین یووالی یې ټینګ کړ، خپل قلمرو ته یې پراختیا ورکړه او د ستر‌واکۍ بنسټ یې کېښود او پر دې سربېره یې سوداګرۍ او کرنې ته ډېره پراختیا ورکړه. د وګړو لپاره یې یو قانون جوړ کړ چې د حمورابي د قانون په نامه یادېږي. د حمورابي پلازمېنه د بابل ښار و چې د لرغونې نړۍ له سترو او ودانو ښارونو څخه شمېرل کېږي.

د حمورابي له مړینې سره په بین النهرین کې بلواوې پیل شوې. په پایله کې یې بابلیان له منځه ولاړل او اشوریان واک ته ورسېدل. اشوریان یو جنګي قوم و او د اشور په ښار کې یې واکمني درلوده. د دغې لړۍ لومړی واکمن لومړی سارګون و چې له میلاده ۱۹۰۰ کاله وړاندې یې د اور ښار تر لاسه کړ. په نهمه مخزېږده پېړۍ کې اشوریانو ډېرې بریاوې تر لاسه کړې او خپل قلمرو ته یې د مدیترانې تر

**د حمورابي د قانون یوه برخه**

که څوک یو تن په قتل تورن کړي، خو په اثبات یې ونه رسوي، تور لګوونکی باید په قتل ورسېږي.

که چا تښتېدلي غلام ته پناه ورکړه، باید ووژل شي.

که چا د یوه بل چا غلام وواژه، په بدل کې یې باید غلام ورکړي.

که یوآزاد تن یو بل آزاد تن ووهي، په بدل کې باید نغدي جریمه ورکړي او که چېرې یې بابلي وواهه باید شپېته درې ووهل شي.

مورګو (سواه لو) پورې پراختیا ورکړه. څه مهال وروسته یې مصر هم تر لاسه کړ. د اشوریانو وروستی واکمن اشور بنپال و چې ډېرې سېمې یې تر خپلې ولکې لاندې کړې او د اعلامیانو سیاسي ځواک ته یې د پای ټکی کېښود. د دغې لړۍ پلازمېنه د نینوا ښار و چې په یاده اداره کې یې ډېره پراختیا موندلې وه.

وروستی قوم، چې له یوې پېړۍ زیات یې په بین النهرین واکمني وکړه، کلدانیان وو. کلدانیان د نویو بابلیانو په نامه هم یادېږي، ځکه خپله پلازمېنه یې له نینوا څخه د بابل ښار ته ولېږدوله او هڅه یې وکړه چې د بابلیانو تمدن راژوندی کړي او د حمورابي قانون پلی کړي، خو بریالي نه شول. په ۵۳۹ مخزېږد

کې هخامنشیانو د کلدانیانو وروستی واکمن، بخت نصر له منځه یووړ او د بابل ښار یې ونیو. په دې ډول بین النهرین د هخامنشیانو په قلمرو کې شامل شو. له هخامنشیانو وروسته ساسانیانو په بین النهرین ولکه وموندله او په اوومه زیږدیزه پېړۍ کې نو موړې سېمه د مسلمانانو له لوري ونیول شوه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د سومریانو، دویمه ډله دې د اکدیانو او دریمه ډله دې د بابلیانو په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- د بین النهرین لومړنی تمدن په څه نامه یادېږي او د رامنځته کېدو لامل یې څه و؟

۲-د سومر د ښاري دولتونو په اړه څه پوهېږئ واضیح یې کړئ.

۳-د اور د واکمنۍ په اړه خپل معلومات وړاندې کړئ.

٤-حمورابي کوم کارونه ترسره کړل واضیح یې کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د بین النهرین د سیاسي وضعې په اړه زیات معلومات راټول او خپلو ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

# د بین النهرین تمدن او فرهنګ

په دې لوست کې به د بین النهرین د خلکو له دیني عقایدو، ټولنیزې او اقتصادي وضعې او علمي لاسته راوړنوسره آشنایي پیداکړئ.

**دین**: د بین النهرین اوسېدونکو په ډېرو خدایانو، لکه د آسمان، سپوږمۍ، ستورو، کرنې او داسې نورو باور درلود. هغوی د ځینو خدایانو مجسمې جوړې کړې وې او په عبادت یې بوخت وو. د ښارونو په مرکزونو کې د غونډیو په سر څو پوړیزه عبادت ځایونو شتون درلود چې په هر عبادت ځای کې د ښار ساتنې د خدای مجسمې ایښودل شوې وې.

د بین النهرین اوسېدونکو د خپلو خدایانو د خوښۍ په موخه بېلابېل مراسم ترسره کول. قرباني یې کولې او په ګډه یې مذهبي سرودونه ویل. هغوی له مړینې وروسته په ژوند باور درلود چې له همدې امله یې له مړو سره په قبرونو کې وسایل ایښودل.

د تاریخي روایتونو او دیني نصوصو له مخې الله تعالی، حضرت ابراهیم (ع) ولیږه چې خلک د باطلو خدایانو له عبادت څخه منع کړي او د واحد خدای عبادت ته یې راوبولي. د حضرت ابراهیم(ع) توحیدي دعوت د دغه مهال د پاچا (نمرود) له مقاومت سره مخامخ شو، خو ډېر ژر د بین النهرین له پولو تېر او فلسطین او جزیرة العرب ته ورسید.

**کرنه**: د دجلې او فرات د اوبو سترو سرچینو شتون د بین النهرین د کرنې د پراختیا او ودې بنسټیز لامل و چې له امله یې د اوبه خورا منظم سیستم رامنځته شو او د ټولنیز ژوند د نظام لپاره لاره هواره شوه. غنم او اوربشې د بین النهرین مهم کرنیز پیداوار وو.

**لیک**: له بین النهرین څخه ډېرې ختینې لوحې ترلاسه شوې چې پر مخ یې په بېلابېلو بڼو لیکنې څرګندېږي. د مؤرخینو څېړنو په ډاګه کړې، دغه لوحې چې لرغونتوب یې ۵۰۰۰ مخزېږد ته رسېږي، په واقعیت کې د هغه مهال کتابونه دي. له همدې امله ویلای شو چې د نړۍ تر ټولو لرغونی کتابتون په بین النهرین کې رامنځته شوی دی. دغه لوحې د ښوونې او روزنې، د خدایانو د عبادت، د حقوقي مسایلو، جګړو، راکړې ورکړې او داسې نورو په اړه مطالب لري چې په میخي لیک لیکل شوي. په دې توګه ویلای شو چې په بین النهرین کې لومړنی رامنځته شوی لیک میخي دی.

**علوم**: د نجوم پوهې په بین النهرین کې د پام وړ پرمختګ کړی و چې لامل یې د ستورو عبادت و هغوی هغه ستوري چې اوس عطارد، زهره، مریخ، مشتري او زحل نومېږي، پېژندل. د دجلې او فرات د سیندونو څپو د بین النهرین وګړي هڅول چې د اوبه خور سیستم د تنظیم او د خپلو ځمکو د پولو ټاکلو په موخه ډېر فکر وکړي. په دې ډول لومړني هندسي او ریاضیکي فعالیتونه منځته راغلل چې وریسې د جمعې، منفي، ضرب او تقسیم عملیې هم رامنځته شوې. د بین النهرین وګړو کال په دولسو سپوږمیزو میاشتو او هره میاشت په څلورو برخو وېشلې وه چې په دې ډول اونۍ رامنځته شوه.

## ډېرپوه شئ: بابل د لرغوني نړۍ ستر او پرتمین ښار

بابل د بین النهرین له لرغونو ښارونو څخه دی. د مؤرخینو په آند دغه ښار له ۴۰۰۰ مخزېږد راهیسې شتون درلود او د نړۍ له لومړنیو ښارونو څخه شمېرل کېده. د بابل ښار د لرغوني بابلي واکمنۍ په ځانګړې توګه د حمورابي د واکمنۍ پر مهال ډېره پراختیا ومونده. په ۵۳۹ مخزېږد کې د بابا ښار د هخامنشي واکمن کوروش په ولکه کې راغی د بابل ښار د فرات د سیند په غاړه پروت دی. د دغه پراخه ښار مساحت ۵۲۰ کیلومتر مربع اټکل شوی دی. د ښار د شا و خوا لوړو او کلکو استحکاماتو شتون درلود. دغو استحکاماتو کابو ۲۵۰ برجونه او ۱۰۰ دروازې درلودې، چې په خوا کې یې له اوبو ډکې ژورې کندې موجودې وې. د ښار دېوالونه یې ۹۰ کیلومتره اوږده وو. د فرات سیند د ښار له منځه تېرېده چې دواړو خواو یې د ښکلو پلونو په واسطه له یوبل سره لار موندله.

د ښار سترې ودانۍ له ډېرو جوړې وې. د دغو ډېرو مخ په سفالي رنګ پوښل شوی و. د ښار له سترو ودانیو څخه یوه هم هغه برج ډوله اووه پوړیزه ودانۍ وه چې کابو ۲۰۰ متره لوړوالی یې درلود او د نړۍ تر ټولو لوړه ودانۍ ګڼل کېده. د دغې ودانۍ باندینۍ لورې د ښکلو انځوریزو کاشیو په واسطه پوښل شوی و.

بین النهرین ته د یونانیانو له راتګ وروسته بابل د سکندر د پام وړ وګرځېد او د هغه استوګنځای شو. د سکندر د ځای ناستو د شخړو په پایله کې دغه ښار ډېر زیانمن شو او له هغه وروسته د سقوط په لور روان شو. د روایاتو له مخې حضرت ابراهیم (ع) په بابل کې بتان مات کړل او د بابل د حاکم (نمرود) په امر په اور کې واچول شو، خو الله تعالی وژغوره. د بابل د ښار کنډوالې د بغداد د سویل په ۸۵ کیلومترۍ کې د کوفې ښار ته نژدې شتون لري.



### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په درې ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د بین النهرین د وګړو د مذهبي عقیدو، دویمه ډله دې په بین النهرین کې د علومو د پرمختګ او دریمه ډله دې د بابل د ښار په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱- د بین النهرین د عبادت ځایونو په اړه څه پوهېږئ؟ توضیح یې کړئ.
۲- د علومو په برخه کې بین النهرین کومې لاسته راوړنې لري؟
۳- د بابل د ښار په اړه څه پوهېږئ؟



### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د بابل د حاکم (نمرود) په اړه معلومات راټول او نورو ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

# د مصر تمدن

په دې لوست کې به په مصرکې د تمدن د رامنځته کېدو د لاملونو، د هغې د بشپړتيايي پړاوونو او همدارنگه د لرغوني مصر له سياسې وضعې سره آشنايي پيداکړئ.

د مصر هېواد په افريقاکې پروت دی. د مؤرخينو په آند په مصرکې د بشري مدنيت د رامنځته کېدو رغنده لامل د نيل سيند و چې په خپلو ښيرازو غاړو مورگوکې يې کلي اوښارونه رامنځته شول. په لوړه کچه يې کلتور ته پراختياورکړه او د بشر د ډېرو فعاليتونو بنسټ يې کېښود.

په مصرکې له ۵۰۰۰ تر ۳۲۰۰ مخزېږد پورې پېر له تاريخ وړاندې دوره بلل کېږي. هغه مهال د نيل په وادۍ کې مرکزي واکمني نه وه، خوسره له دې هم ځينې ځايي واکمنۍ يوموټې شوې او دوه واکمنۍ چې يوه په سويل اوبله په شمال کې رامنځته کړه.

په دغه دوره کې هنر وده وکړه. د دودونو پر بنسټ قانون جوړشو اوهمدارنگه ليکنې او کليزې رامنځته شوې چې ددغه پېرله علمي پرمختياووڅخه گڼل کېږي.

په ۳۲۰۰ مخزېږد کې د سويلي او شمالي واکمنيو د يوځای کېدو په ترخ کې مرکزي واکمنۍ منځته راغله. د دغې واکمنۍ بنسټ ايښودونکی لومړی مينز (Menz) و چې د لومړۍ دورې بنسټ ايښودونکی هم و.

## د لرغوني مصر د ودې پړاوونه

مؤرخين د مصرلرغونی تاريخ د مينز له مهاله د هخامنشيانو تر ورتگ پورې په درې دورو وېشي.

### ۱- لرغوني واکمني

لرغوني واکمني واک ته د مينز له رسېدو سره پيلېږي. په دغه واکمنۍ کې شپږ کورنۍ يو بل پسې واک ته ورسېدې. په دغه دوره کې د واکمنۍ سيستم تيوکراسي ( ديني) و. پاچا هم سياسي او هم ديني مشر و ځکه د هغه ځواک د خدای ځواک گڼل کېده او په خلکو کې يې خورا درناوی کېده. له همدې

امله ورته د فرعون لقب ورکړ شوی و.

لرغونې واکمنۍ د پام وړ پوځي ځواک نه درلود او سیاست یې سوله ییز و. دغه دوره په ۲۳۰۰ مخزېږد کې پای ته ورسېده، ورسره په مصرکې نوی پېر پیل شو او دوه پېړۍ یې دوام وکړ چې د فیوډالي دورې په نامه یادېږي. په یاده دوره کې ګډوډي واکمنه وه. نجیبان د ډېرځواک څښتنان وو چې له امله یې د ټولنیزو پوړکو (طبقاتو) له لوري وخت په وخت پاڅونونه رامنځته کېدل.

## ۲- منځنۍ واکمني

په ۲۱۰۰ مخزېږد کې یوولسمه کورنۍ واک ته ورسېده چې په پایله کې یې ګډوډۍ پای ته ورسېدې او د مصر په تاریخ کې یوه نوې پاڼه پرانیستل شوه چې د منځنۍ واکمنۍ په نامه یادېږي.

دغه واکمنۍ د لرغونې واکمنۍ په پرتله کمزورې وه. فرعونیان یوبل پسې واک ته رسېدل، خو اصلي ځواک دکوچنیو واکمنانو په لاس کې و. دولسمې کورنۍ دغه حالت ته بدلون ورکړ. فرعونیان یې د پوره ځواک څښتن کړل. عدالت یې ټینګ او خلک یې د اصلیت او توکم له توپیر پرته په کارونو وګومارل. ویلای شو چې دولسمه کورنۍ د ولسواکۍ لومړنۍ بنسټ ایښودونکې وه. دغه واکمني د ټولنیز عدالت او علمي پرمختیاوو له مخې یوه زرینه دوره وه. له پای ته رسېدو سره یې مصر یوځل بیا دګډوډیو او بهرنیو بریدونو دورې ته ورننوت چې له دوه پېړیو زیات دوام وکړ او په پایله کې یې ټولنیزې اوعلمي پرمختیاوې له منځه ولاړې. هکسوسیانو، چې په لوېدیځې آسیا واکمن شوي وو، مصر تر ولکې لاندې راوست. دغې ولکې پرمصریانو مهم اغېز وکړ. هغوی یې نه یوازې له جګړه ییزو اصولوسره بلدکړل، بلکې د بهرنیانو په وړاندې یې یو موټی کېدو ته هم وهڅول. مصري واکمنانو د هکسوسانو په وړاندې پاڅونونه پیل کړل او بهرني ځواکونه یې له خپلې سېمې څخه وایستل. د دغې بریا اتل د اتلسمې کورنۍ مؤسس لومړی اهموز و.

## ۳- د امپراتورۍ دوره



د فرعون انځور

دغه دوره د هکسوسانو له ایستلو او د لومړي اهموز له واک ته رسېدوسره پېلېږي اهموز د مخکنیو دورو په پرتله یو پیاوړی نظام رامنځته کړ. فلسطین یې ونیو او تر سوریې پورې ورسېد. د دغې دورې تر ټولو بریالي بریدونه د دریم توتمس پرمهال پېښ شول چې د دجلې او فرات ترمنځ سېمه یې د مصریه قلمرو کې ورګډه کړه.

د امپراتور له مړیني وروسته یوځل بیا ګډوډۍ رامنځته شوې، خو مصري فرعونیان یې په له منځه وړلو کې پاتې راغلل. له امله یې یو په بل پسې انقلابونه پیل شول او تر دولسمې مخزېږدې پېړۍ پورې یې نیول شوې سیمې له لاسه ووتې او واکمنی یې د ځوړتیا په لور روانه شوه.

په ۶۷۰ مخزېږدکې مصر د اسوریانو له لوري ونیول شو او تر ۶۶۲ مخزېږد پورې یې تر استعمار لاندې واوسېده. له دې وروسته مصر یو ځل بیا ځواک ترلاسه کړ او کلتور پراختیا ومونده، خو دغه حالت ډېر دوام ونه کړ. په ۵۲۵ مخزېږد کې مصر د فارس امپراتورۍ له لوري ونیول شو چې له دې وروسته تېرتمدن بیا راژوندی نه شو.

په ټولیزه توګه په مصرکې شل کورنۍ واک ته ورسېدې او ګڼ شمېر فرعونیانو پکې واکمني وکړه. له هغوی څخه یو هم دویم رامسس و چې د واکمنۍ پرمهال یې حضرت موسی علیه السلام راڅرګند شو.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د لرغونې واکمنۍ، دویمه ډله دې د منځنۍ واکمنۍ او دریمه ډله دې د امپراتورۍ دورې په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱-د نیل په وادي کې مرکزي واکمني څه مهال او د چا له لوري رامنځته شوه؟

۲-د لرغوني مصر د تاریخي دورو په اړه خپل معلومات وړاندې کړئ.

۳-حضرت موسي (ع) د کوم فرعون په واکمني کې راڅرګند شو؟ نوم یې واخلئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د مصر د فرعونیانو په اړه معلومات راټول او خپلو ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

# د مصر تمدن او فرهنګ

په دې لوست کې به د مصريانو د مذهبي عقايدو، ټولنيزې وضعې، اقتصادي سيستم، علمي لاسته راوړنو، هنري فعاليتونو او د لرغوني مصر له تاريخي آثارو سره آشنايي پيداکړئ.

**دين**: دلرغوني مصر د وګړو په ټولنيز ژوند کې مذهب ډېر رول درلود او د ژوند په هر اړخ يې اغېز کړی و. د لرغوني واکمني سيستم تيوکراسي (ديني ) و. په منځنۍ واکمنۍ او آن د امپراتورۍ په دوره کې د هېواد چارې د مذهب له لارې اداره کېدې.

په لرغوني واکمنۍ کې بېلابېل دينونه سره يوځای او يو واحد دين منځته راغی. همدارنګه له بېلابېلو خدايانوڅخه درې آمون (د لمر رب النوع) چې د عدالت، رښتينولۍ او د کايناتو د اخلاقي چارو ساتندوی ګڼل کېده او اوسيروس (د نيل رب النوع) چې د نباتاتو خدای ګڼل کېده منځته راغلل. د منځنۍ واکمنۍ او د امپراتورۍ په پېرکې دين خپل وروستنی تکامل ترلاسه کړ.

د هکسوسانو د يرغل پرمهال دغه دين په خرافاتي دين تبديل شو. خلکو د پيسو په مقابل کې په پاپيروس ليکل شوی ښنليک اخيسته او د مړي ترڅنګ يې په قبر کې ايښوده. په دې ليک کې له ارباب الانواعوڅخه د نومړي شخص د ښنلو غوښتنه کېده. د غو ديني خرافاتو چې د روحانيونو له خوا پلي کېدل، پر چاپېريال ناوړه اغېز وکړ چې له امله يې په ۱۳۷۵ مخزېږدکې دځلورم امنوهوتپ



د مصر اهرامونه

په مشرۍ پاڅون رامنځته شو. زوړ مذهب له منځه ولاړ او پرځای یې نوی دین رامنځته شوچې په هغه کې د اتون د خدای (د لمر لرغونی نوم) عبادت کېده. امنوهوتپ خپل نوم په اخناتون تبدیل کړ. وروستیو فرعونانو له دغه مذهب سره لیوالتیا نه درلوده، په تیره توتن خامون چې دیني خرافات یې بیا دود کړل او د اتون دین یې له منځه یووړ.

د لرغوني مصر کلتوري میراثونه تر ډېره اهرامونه، مومیایي جسدونه، عبادتځایونه، مقبرې، مجسمې، انځورونه، ډېرلیکونه او مذهبي سرودونه دي چې ټول یې د مذهب په سیوري کې منځته راغلي دي.

مصریانو پر ډول ډول خدایانو عقیده درلوده. لمر، سپوږمۍ، نیل او ځینې حیوانات یې سپېڅلي بلل او د درناوي په موخه یې د هغوی انځورونه او مجسمې په عبادتځایونو کې ایښودې. دا هم باید په یاد و لرو چې ددغو ټولوخرافاتو او شرک ترخنګ الله تعالی د توحید لارې ته د خلکو د رابللو په موخه پیغمبران علیهم السلام راستولي دي. موسی علیه السلام او ورور یې، هارون علیه السلام په مصر کې په پیغمبرۍ مبعوث شول. موسی علیه السلام او پیروانو یې د الهی تعلیماتو په رڼاکی د ژوندانه او واحد خدای ﷻ د عبادت بیرغ پورته کړ او د دغه مهال له فرعون سره یې نښته وکړه.

د شرک او خرافاتو او د فرعون د تېري او بې عدالتی په وړاندې د موسی علیه السلام پاڅون په پای کې د خلکو په یو خوځښت تبدیل شو چې په پایله کی یې فرعون ډوب شو او د توحید دعوت یوځل بیا لوړ پوړ ته ورسېده.

په پیل کې مصریانو خپل مړي په ټوټو پوښل او په قبر کې یې ایښودل، خو وروسته یې دغه لاره بدله کړه او د بدن د ساتنې په موخه یې هغوی مومیایي کول او د اړتیا وړ وسایل یې ورسره په قبر کې ایښودل.

## ټولنیزحالت

مصري ټولنه په واقعیت کې له څلورو پوړیو څخه جوړه شوې وه. په هر پوړ کې یې افرادو او په سر کې یې فرعون ځای درلود. د پوړکو ترمنځ د ژوند توپیر ډېر نه و. ټول وګړي د قانون په وړاندې برابر وو. سره له دې چې اقتصادي توپیرونو شتون درلود، د شاهي کورنۍ له غړوپرته د هیڅ تن ټولنیز موقعیت څرګند نه و او ان نوکرانو او غلامانو کولای شول له یوه ټولګي څخه بل ته پورته شي. غلامان، چې په پیل کې په سختو کارونو ګومارل کېدل، وروسته په عسکري خدمت کې شامل شول او په ژوند کې یې بدلون راغی چې په پایله کې د غلامانو ټولګی ببخي له منځه ولاړ.

په مصري ټولنه کې ښځو لوړ مقام درلود، تر دې چې فرعوني تاج او تخت ته ورسېږي. په کورنۍ کې د ننه ودونو ډېر دود درلود. د دغه دود له مخې فرعونیانو له خپلو نژدې خپلوانو او د کورنۍ له غړو سره واده کاوه.

د ښوونې او روزنې په ډګر کې هم مصر د پام وړ پر مختګ کړی و. د دولتي ښوونځیو ترڅنګ خصوصي ښوونځیو هم شتون درلود او د هر ټولګي افرادو پکې زده کړه کولای شوه.

## اقتصادي سیستم

د مصر اقتصادي بنسټ په کرنې او مالدارۍ ولاړ و. کرنې ډېره پراختیا موندلې وه او ځمکو ښه حاصل ورکاوه. د هغه مهال د کلتور له مخې ټولې ځمکې د فرعون ملکیت وې چې د مالیې په مقابل کې یې پر خلکو وېشلې. له شلمې مخزېږدې پېړۍ وروسته سوداګرۍ چټکه پراختیا وموندله او د اقتصادي بنسټ په پیاوړتیا کې یې تر ټولو زیات اهمیت ترلاسه کړ.

مصریانو له بهرنیو هېوادونو سره سوداګریزو اړیکو ته پراختیا ورکړې وه چې ښه بېلګه یې په ۳۰۰۰ مخزېږد کې مصر ته د افغانستان د لاجوردي ډبرو رسېدل و.

صنعت هم د مصر د اقتصاد په پیاوړتیا کې ډېر ارزښت درلود. بېړۍ جوړونه، ښیښه جوړونه، کولالي، د ټوکرانو اوبدل او د ډبرې توږل هغه صنایع وې، چې ګڼ شمېر وګړي یې په کارونو بوخت کړي وو. د فلزي پیسو په جوړونه کې هم مصر نړیوال شهرت ترلاسه کړی و.

د امپراتورۍ تر دورې پورې ځمکې د خلکو ترمنځ وېشل شوې وې او د حکومت له عملي کنټرول څخه بهر ګڼل کېدې، خو د دغې دورې زیات لګښت په کروندګرو د لوړې مالیې لامل وګرځید چې په دې توګه فرعونیان د ځمکو څښتن او کروندګر یې نوکران شول. سربېره پر دې د زیاتو پیسو د لاسته راوړلو په موخه بهرنۍ سوداګري هم د دولت له لوري انحصار شوه.

د اخناتون له دورې پرته د امپراطورۍ په ټوله دوره کې روحانیون له مالیې معاف وو او د دولت په پانګه کې یې مهمه ونډه درلوده. سربېره پر دې د کرنیزې ځمکې یو پر اوومه برخه د روحانیونو حق و او همدارنګه د زرګونو څارویو او کابو سل بېړیو څښتنان هم وو.

## ادبیات

مصریان لومړني خلک وو چې انځوریز لیک (هیروغلیف) یې رامنځته کړ. مصري کاهنانو دغه لیک د عبادتځایونو، ماڼیو او د فرعونیانو د مقبرو د اړونده مطالبو د لیکلو په موخه کاراوه او په ځانګړو

مدرسو کې یې زده کوونکو ته ورښوده. له هیروغلیف پرته د دیموتیک په نامه هم یولیک دود و چې د منځني پوړ وګړو او سوداګرو ورڅخه کار اخیسته.

کاهنان په مدرسوکې د اشرافو د زامنو په روزنه او د بېلابېلو علومو په ښوونه بوخت وو. په دغو مدرسو کې د پاپیروس له کاغذ څخه ګټه اخیستل کېده.

دکلیزو رامنځته کېدل هم د یادونې وړدي چې په حقیقت کې د هغه مهال د تاریخ کتابونه وو. په دغو کلیزو کې مصري منشیانود فرعونیانو برياوې څرګندولې او د هغوی اړوند مسایل یې لیکل.

## هنر او معماري

د مصر تمدن ته تردېره هغوکلتوري میراثونو شهرت ورکړی چې د یادګار په ډول پاتې دي. دغه آثار له اهرامونو، عبادتځایونو، ماڼیو، مجسمو او هغو انځورونو څخه عبارت دي دا آثار د وخت د واکمنیو د لویې او پوهې څرګندونه کوي، چې د مصر درې ګوني اهرامونه یې ښې بېلګې دي. د اهرامونوسربېره ګڼ عبادتځایونه هم ودان شوي وو چې په چاپېر کې یې د کاهنانو، غلامانو او کار کوونکو ځانګړو ځایونو شتون درلود. په دغو عبادتځایونو کې د سپیڅلو ځارویو مجسمې ایښودل شوې وې او ستنې یې له دیني لیکنو او انځورونو ډکې وې.



### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د مصریانو د مذهب، دویمه ډله دې د اقتصادي سیستم او دریمه ډله دې د هنر او معمارۍ په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱-د مصریانو د دیني عقیدو په اړه څه پوهېږئ؟ توضیح یې کړئ.

۲-د مصریانو د ټولنیز حالت په اړه څه پوهېږئ؟ توضیح یې کړئ.

۳-د مصریانو د ادبیاتو په اړه څه پوهېږئ؟ توضیح یې کړئ.



### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د مصریانو د لاسته راوړنو په اړه خپل معلومات ولیکي او ټولګیوالو ته دې واوروي.

# د فارس تمدن

په دې لوست کې به د آریانا تمدن د فارس له برخې سره آشنا شئ او هم به د فارس د تمدن سیاسي، ټولنیزې، اقتصادي او کلتوري وضعي په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

هغه مهال چې آریایان په بلخ کې مېشت شول، د وګړو د ډېرښت له امله د اریانا دننه ختیځ او لویدیځ ته وکوچېدل. هغه شمېر، چې لویدیځ ته کډه شول د فارس په شمال د (اوسني ایران) کې مېشت شول د ((ماد)) او ((فارس)) په نومونو د یوه مدنیت بنسټ یې کېښود، چې د فارس د تمدن په نوم شهرت لري.

د فارس پراخې دښتې، سیندونه، شتمنې او طبیعي زیرمې د دې لامل شوې چې په دغه هېواد کې کرنه، مالداري او صنعت د پام وړ پراختیا وکړي او بشري تمدنونه رامنځته شي.

سیالک، ګوران، مارلک، جیروفت او شهر سوخته د فارس نامتو لرغوني سیمې دي چې وګړو یې د ګاونډیو سیمو له وګړو، لکه د منديګک، موهنجودارو او هړپې له اوسېدونکو سره اړیکې درلودې.

له میلاد څخه ۳۰۰۰ کاله وړاندې ایلامي وګړو په فارس کې د ایلام تمدن رامنځته کړ. د دغه تمدن په اړه ډېر تاریخي معلومات د شوش له ښار څخه، چې د ایلامي واکمنۍ سیاسي مرکز و، ترلاسه شوي دي. ایلام د ادب، هنر او صنعت په برخه کې د پام وړ پراختیا وموندله. د بابلیانو او اشوریانو له واک ته رسېدو سره ایلامیان کمزوري شول او په پایله کې په ٦٤٥ زېږدیز څخه وړاندې کې د اشور بناپال له لوري فتح شو. اشوري لیکنې د هغو دوو قبایلو یادونه کوي چې د فارس په شمال لویدیځ کې مېشت وو او د ماد او پارسیانو څخه عبارت دي.

د هیرودت په وینا د اتمې مخزېږدې پېړۍ په وروستیو کې د دیاکو په نامه یوه شخص د ماد قبایل تر خپلې ولکې لاندې راوستل او د ماد د واکمنۍ بنسټ یې کېښود.

په دغه لړۍ کې درې نامتو پاچاهان واک ته ورسېدل چې یو له هغوی څخه هم استیاگ و چې په واکمنۍ کې یې د ماد څواک خپل لوړې پوړۍ ته ورسېد او د ماد قلمرو ته یې ډېره پراختیا ورکړه.

د ماد د قلمرو پراختیا د فارسي قبایلو له لوري ودریده. پارسیان د کوروش په مشرۍ یو موټی شول او په ۵۵۳ مخزېږد کې یې د ماد واکمني له منځه یووړه. په فارس کې د ماد له راپرځېدو سره هخامنشي واکمني منځته راغله. د دغې واکمنۍ نامتو واکمن لوی کوروش و چې د بابل ښار یې تر ولکې لاندې راوست او ځان یې د بابل پاچا وباله.

له کوروش وروسته د هغه زوی لومړی کمبوجیه واک ته ورسېد. کمبوجیه په مصر یرغل وکړ او هغه یې په خپله ولکه کې راوست. د هخامنشیانو اته واکمنان یو په بل پسې واک ته ورسېدل چې په پای کې په ۳۳۵ مخزېږد کې د هخامنشیانو وروستي واکمن، دریم داریوش د مقدوني سکندر د یرغلونو په پایله کې ماته وخوړه او ورسره دغه لړۍ پای ته ورسېده.

## تمدن او فرهنگ

**دین**: د شرک او خرافاتو د خپرېدو په پایله کې په پخواني فارس کې د ځینو ځارویو، ځمکې، آسمان، اوبو او اور عبادت تر ډېره دود و. د اور عبادت د ستورو عبادت په تېره د لمر عبادت ځانګړی رول درلود. د پخوانیو فارسیانو په مذهب کې عبادتځایونو شتون نه درلود. دیني مراسم، دعاگاني او قرباني په مناسبو ځایونو کې ترسره کېدې. خو وروسته عبادتځایونه ودان شول چې د خدایانو مجسمې پکې ایښودل کېدې او خلکو به یې عبادت کاوه.

ایلامیانو له مړینې وروسته پر ژوند باور درلود او له خپلو مړو سره یې خاورینې کوزې خښولې او همدارنګه یې له کانالونو څخه قبرونو ته اوبه ورتویولې چې مړي تږي نه شي.

د زردشت په راڅرګندیدو سره زردشتي مذهب د فارس دولتي مذهب شو او ډېر ارزښت یې ترلاسه کړ.

## هنر، صنعت او معماري

په لرغوني فارس کې ایلامیانو د ختینو او فلزي لوښو په جوړولو، مجسمه جوړولو او د ډېرو پر مخ د انځورونو په کښلو کې ډېر مهارت درلود. د ماد وګړو خپل کورونه په لوړو ځایونو کې د ټینګو کلاګانو په منځ کې جوړول. د دغو کلاګانو شا او خوا تاو راتاو دیوالونو او د څار برجونو شتون درلود چې د جګړې د سنګرونو په څېر ورڅخه ګټه اخیستل کېده.

ماد د خپلو شاهانو لپاره په غرونو کې قبرونه کیندل. د لرغونپوهانو په واسطه موندل شوي خاورین لوښي او فلزي آثار د هنر او معمارۍ په برخه کې د ماد د هنري مهارتونو څرګندونه کوي.

هخامنشي واکمنانو د خپل ځواک د ښوولو په موخه ګڼ شمېر ماڼۍ ودانې کړې وې، چې له هغو څخه یوه هم د جمشید تخت دی.

له هخامنشي لړۍ څخه د بیستون ډېرلیک ډول ډول فلزي، طلایي، نقره یي او د زېړو آثار لکه: سکې، وسلې، جامونه، لوښي او لوحې پاتې دي چې د هغه مهال د صنعت د پرمختګ څرګندونه کوي.



د جمشید د تخت یو انځور

**د جمشید تخت**: د هغو ښکلو ماڼیو مجموعه وه چې د هخامنشیانو په واسطه جوړه شوې وه. داریوش دغه ځای د خپلې ماڼۍ لپاره غوره کړ او د جوړېدو په موخه یې له ټول هېواد څخه ګڼ شمېر هنرمندان په کار وګمارل. له داریوش وروسته ټولو هخامنشي واکمنانو په دغه

ځای کې ماڼۍ جوړې کړې.

په دغه سېمه کې هر کال د نوروز د جشن مراسم ترسره کېدل چې له بېلابېلو ولایتونو څخه پکې له ښکلو سوغاتونو سره استازیو ګډون کاوه. د یوناني سکندر له راتګ سره د دغه تخت ډېر ارزښتناکه وسایل له منځه ولاړل او ودانۍ یې زیانمنې شوې.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د ماد او فارسیانو د واکمنۍ دویمه ډله دې د پخواني فارس د مذهب او دریمه ډله دې د هنر او معمارۍ په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې خپل معلومات نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- د فارس لرغونې سېمې کومې دي؟

۲- د هخامنشي واکمنۍ بنسټ ایښودونکی څوک و او څه مهال رامنځته شو؟

۳- د ماد د واکمنۍ د هنر او معمارۍ په اړه څه پوهېږئ واضیح یې کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د جمشید د تخت په اړه معلومات ولیکي او خپلو ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

# د هند تمدن

په دې لوست کې به د هند تمدن د رامنځته کېدو د څرنګوالي، سیاسي، ټولنیزې او کلتوري وضعې، علمي لاسته راوړنو او د لرغوني هند د هنر او معمارۍ سره آشنایي پیداکړئ.

هند په آسیا کې د تمدن د پیدایښت له لرغونو مرکزونو څخه ګڼل کېږي. هند هغه پراخه او ښکلې سیمه ده چې په خپله غېږ کې يې ډېر مدنیتونه، علوم او مذهبونه روزلي دي.

په ۱۹۲٤ز کال کې لرغونپوهانو په هند کې د دوو لرغونو سیمو (هراپه او موهنجودارو) پاتې شونې وموندل چې لرغونتوب يې ۳۰۰۰ مخزېږد ته رسېږي. هر په او موهنجودارو کراچۍ ته څېرمه ځای لري، د دراویدي اقوامو اړوند او د هند له لرغوني تمدن څخه ګڼل کېږي. د هریه او موهنجودارو تمدن د سند په لویديځ کې رامنځته شوی. له دغې سیمې څخه ترلاسه شوي آثار څرګندوي چې =د دغې



له موهنجودارو څخه د ودانیو پاتې شونې

سېمې وګړي په ۳۰۰۰ مخزیږد کې په کرنه، مالدارۍ او د میوه لرونکو ونو په روزنه بوخت وو. هغوی له برونزو څخه د کار وسایل، د کور لوښي او وسلې جوړولې او په لاسي صنعت کې هم مخکښ وو. د هړپه او موهنجودارو پاتې شونې ښيي چې په دغه سېمه کې له پخو خښتو څخه جوړ ګڼ شمېر کورونو، دوکانونو او واټونو شتون درلود، چې عموماً کورونه دوه. پوړيز او د پراخه کوټو لرونکي وو. په دغو ښارونو کې د تالارونو، د اوبو څاګانو، حمامونو، د کانالونو په واسطه د اوبه خور سیستم او د کانالیزاسیون سیستم شتون دا په ډاګه کوي چې دغه وګړي د یو پرمختللي تمدن لرونکي وو.

له مخزیږد څخه ۱۵۰۰ کاله وړاندې آریایان هند ته کډوال شول او د دراویدي اقوام يې چې د پرمختللي تمدن لرونکي وو، د ځان تابع کړل. آریایانو هند ته له راتګ وروسته د کاست (طبقاتي) سیستم رامنځته کړ. د دغه ویش پر بنسټ څلور طبقې لکه: برهما (روحانیون) کشتاتریان (جګړه ماران) ویستا (سوداګر او کروندګر) او سودرا (کارګران) رامنځته شول.

آریایانو په هند کې واحده واکمني رامنځته نه کړه، بلکې هرې قبیلې د ځان لپاره یو کوچنی قلمرو غوره کړ او پکې میشت شول چې په پایله کې بهرنیانو ته په هند د یرغلونو زمینه برابره شوه.

هخامنشي واکمن داریوش د هند شمال فتح کړ، خو د سکندر په واسطه د هخامنشیانو له منځه تلو سره د هند شمال د یونانیانو لاس ته ورغی. د سکندر له مړینې سره سم یو هندي قوماندان چندرا ګوپتا د یونانیانو په وړاندې پاڅون وکړ او هغوی يې له هند څخه وایستل. هغه په لنډ وخت کې ځایي واکمنۍ سره یوموټې او یوه ځواکمنه واکمني يې رامنځته کړه چې د موریایانو واکمني بلل کېږي. د دغې واکمنۍ له مشهورو واکمنانو څخه یو هم اشوکا و چې په تاریخ کې ډېر شهرت لري. له موریایانو څخه وروسته په هند کې د ګوپتا واکمني منځته راغله چې څو پېړۍ یې دوام وکړ.

## فرهنګ او تمدن

**دین**: دتاریخي حقایقو او سمو دیني عقایدو په نظرکې نیولو سره، توحید او د یوه خدای عبادت د انسانانو په دیني تاریخ کې یو اصل دی او له خدای ﷻ څخه پرته د نورو شیانو عبادت ته مخه کول له سمې لارې څخه انحراف او بې لاري ده. د همدې انحراف پربنسټ د آریایانو له مهاجرت وړاندې په هند کې د حیواناتو او طبیعت لمانځنه کېده. لوی او غټ خدایان یې آګني (د اور خدای) او اندیرا (د باران خدای) وو. په لرغوني هند کې ډېر کیشونه رامنځته شول، چې له هغوی څخه یو هم برهمن و. د برهمن دین دولت ته د خدایي مقام ورکاوه او پاچا یې سپېڅلی باله.

په شپږمه مخزېږده پېړۍ کې په هند کې د بودا دین منځته راغی چې د اشرافو له ملاتړ څخه برخمن شو او ډېره براختیا یې ومونده.

## علم، هنر او معماري

د لرغوني هند وګړو په ریاضي او طبابت کې ډېر پرمختګ کړی و. له ۱- ۹ پورې اعداد، اعشاري سیستم او داسې نور د هندیانو له لوري رامنځته شول. هندیانو د اړتیا له مخې د جشن او قربانی ورځې وټاکلې او له همدې امله یې نجوم ته هم ډېر پام اړولی و.

په لرغوني هند کې هنر او معمارۍ هم ډېره پراختیا موندلې وه چې بېلګې یې د هرپې او موهنجودارو په پاتې شونو کې تر سترګو کېږي. د بودایي دین له پراختیا سره سم په ټول هېواد کې ګڼ شمېر عبادت ځایونه ودان شول. سربېره پردې د واکمنانو لپاره ښکلې او سترې ماڼۍ جوړې شوې، چې پاتې شونې یې تر دې مهاله شتون لري او په لرغوني هند کې د هنر او معمارۍ د پرمختګ ښرګندونه کوي.

د هندي هنرمندانو يو بل مهم کار د مجسمو جوړول وو. هغوی د بودا او هندي خدایانو لپاره له لرګيو او ډبرو څخه ګڼ شمېر مجسمې جوړې کړې وې چې د وګړو له لوري يې عبادت کېده.

## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دريو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې هند ته د آريايانو د ورتګ، دويمه ډله دې د لرغوني هند د دين او دريمه ډله دې د هنر او معمارۍ په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې خپلو ټولګيوالو ته وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱- د هند د لرغونو سيمو په اړه څه پوهيږئ؟ واضيح يې کړئ.

۲-آريايان هند ته څه مهال ولېږديدل او څه ډول طبقاتي سيستم يې رامنځته کړ؟

۳- په لرغوني هند کې د علم د پراختيا په اړه خپل معلومات وړاندې کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د هنديانو د کلتور په اړه معلومات راټول او خپلو ټولګيوالو ته دې وړاندې کړي.

# د چین تمدن

په دې لوست کې به د لرغوني چین له سیاسي، ټولنیزې، کلتوري او اقتصادي وضعې او تاریخي اثارو سره آشنایي پیداکړئ.

د چین هېواد د آسیا په ختیځ کې پروت او د نړۍ له لرغونو تمدنونو یو څخه دی. د چین تمدن د هوانګهو د سیند په غاړه کې رامنځته شوی چې ښېرازه ځمکې یې درلودې او وګړي یې په کرنه بوخت وو.

په لرغوني چین کې لومړنۍ واکمني په ۱۵۰۰ مخزېږد کې رامنځته شوه چې د شانګ په نامه یادېږي. د خط او کلیزې رامنځته کېدل او د چیني لوښو جوړېدل د شانګ دورې له مهمو تمدني لاسته راوړنو څخه ګڼل کېږي.

دویمه واکمني چې په چین کې رامنځته شوه، د (چو) په نامه یادېږي، چې واکمنانو یې له ۱۰۲۸ – ۲۵۶ مخزېږد پورې واکمني وکړه. د چو د واکمنۍ په وروستیو کې په چین کې کورنۍ جګړې او اخ وډب رامنځته شوی چې په پایله کې یې د (چه این) په نامه قبیلو پر چین ولکه ومونده او د لرغوني چین د یوې مشهورې واکمنۍ بنسټ یې کېښود.

د چه این قبایلو واکمن شي هوانګ تي و چې د چین په تاریخ کې ډېر شهرت لري. شي هواتګ تي پیاوړی پوځي ځواک درلود او له همدې امله په دې بریالی شو چې ورې واکمنۍ له منځه یوسي. هغه د چین پر پراخه هېواد ولکه ومونده او خپل ځان یې لومړی سترواک وباله. په دغه واکمنۍ کې د چین د تمدن د ودې او نیکمرغۍ دوره پیل شوه. قوانین رامنځته شول، سړکونه جوړ شول او د بهرنیو بریدونو د مخنیوي په موخه د یوه دیوال جوړول پیل شول چې دا مهال د چین د ستر دیوال په نامه یادېږي.

د شي هوانګ تي له مړینې وروسته په چین کې ګډوډۍ رامنځته شوې چې په پایله کې یې د هان لړۍ واک ته ورسېده. د هان د واکمنۍ پر مهال بودايي مبلغانو چین ته سفرونه وکړل او په دغه هېواد کې یې بودايي دین ته پراختیا ورکړه.

## فرهنگ او تمدن

**دین**: په لرغوني چین کې وګړو د آسمان، ځمکې او خپلو نیکونو عبادت کاوه. د پخواني چین دوه ستر کیشونه د تاو او کنفیسوس عقاید دي. د دغو دینونو له نظره انسان او طبیعت سره ډېر نژدې دي او یو پر بل اغېز کوي. د تاو دین د ساده ژوند ښېګڼې او پرخپلو غوښتنو سترګې پټول تبلیغوي. کانفوسیوس له ټولنې سره د اړیکو پیدا کولو او د انسانانو ترمنځ د اړیکو په درلودلو باندې ټینګار کوي. دغه دین د پخوانیو دودونو، مشرانو، پلرونو، نیکونو او د کورنۍ یووالي په درناوي تاکید کوي.

د هان په واکمنۍ کې د بودا دین دغه هېواد ته راغی او ګڼ شمېر پیروان یې وموندل چې د چینایانو په کلتوري ژوند یې ډېر اغېز وکړ.

**ادبیات**: د چینایانو لیکدود د هیروګلیف په څېر یو لرغونی لیکدود دی. دغه لیکدود د چه این په واکمنۍ کې معیاري شو او په ټول چین کې دود شو چې تر دې مهاله کارول کېږي. دغه لیکدود په نورو هېوادونو کې هم خپور شو او د جاپانیانو، کوریایانو او ویتنامیانو د لیکدود بنسټ یې کېښود.

په لرغونو پېړیو کې لیک د هډوکو او لرګیو پرمخ کښل کېده. په لومړۍ میلادي پېړۍ کې په چین کې کاغذ رامنځته شو چې په لیکلو کې یې یو ستر انقلاب رامنځته کړ او ډېرو خلکو ته یې پوهه ورسوله.

د چین د لیکدود پرمختګ د شتمنو ادبیاتو لپاره لاره هواره کړه. ګڼ شمېر نثرونه، د قصیدو کتابونه او تاریخي آثار ولیکل شول. د شعر په برخه کې هم د پام وړ پراختیا رامنځته شوه.

## علم، صنعت او هنر

چینایانو د نجوم، ریاضیاتو او جغرافیې په برخه کې ډېر پرمختګ کړی و. د چویه واکمنۍ کې د بېلابېلو ایالتونو لپاره نقشې جوړې شوې او د هېواد د جغرافیې په اړه ډېر معلومات ترلاسه شول. چینایانو د زلزلې په اړه هم معلومات لرل او د زلزلې د معلومولو لپاره یې یوه آله هم رامنځته کړې وه. هغوی د اوسپنې په مقناطیسي ځانګړتیا پوهیدل، چې وروسته یې قطب نما رامنځته کړه. چینایانو د انسان د اناتومۍ په برخه کې هم ډېره پوهه درلوده. په یوشمېر ناروغیو او د هغوی د درملنې په اړه یې هم معلومات درلودل.

چینایان لومړني وګړي وو چې له خټینولوښو او فلزکارۍ سره یې ښه آشنایي درلوده. د چین ستر ښارونه له پوهانو او صنعتکارانو ډک وو. د کاغذ او چاپ فن، قطب نما او د باروتو جوړول د چینایانو ویاړونه دي. د چیني لوښو جوړونې او د ټوکر او بدلو صنعت ډېر پرمختګ کړی و.

په لرغوني چین کې هنر او معمارۍ هم ډېره وده کړې وه. د لرغوني چین په ښارونو کې ګڼ شمېر ماڼۍ او عبادت ځایونه جوړ شوي وو. د چین ستر دیوال د هغه مهال د معمارۍ د مهارت یوه ښکارنده بېلګه ده.



د چین ستر دیوال

د چین ستر دیوال د نړۍ له برمه ډک تاریخي اثر دی. دغه تاو راتاو دیـوال د آرام سمندر له غاړو او مورګو څخه پیلېږي او د تبت په پولو کې پای ته رسېږي. دغه دیوال د شي هوانګ تي سترواک په امر په شلو کلونو کې جوړ شوی دی. د دغه دیوال لوړوالی اووه نیم متره دی، پراخوالی یې هم په همدې کچه دی. داسې ویل کیږي چې کله به کوم کارګرمړ کېده او یا به ناجوړه کېده هغه به یې په دیوال کې خښاوه. د دیوال له پاسه په هره سل متری کې امنیتي پوستې موجودې دي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د چین د واکمنیو او دویمه ډله دې د چین د تمدن او فرهنګ په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې خپل معلومات نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

## پوښتنې

۱- د چه این قبایلو مشر څوک و او کوم کارونه یې ترسره کړل؟

۲- د پخواني چین د مذهبونو په اړه څه پوهیږئ؟ واضیح یې کړئ.

۳- د چینایانو د علمي پرمختیا په اړه معلومات وړاندې کړئ.

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د چین د ستر دیوال په اړه معلومات ولیکي او ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

# د یونان تمدن

په دې لوست کې به د کرت تمدن، د یونان ښاري دولتونو، تولنیزې او کلتوري وضعې او همدارنګه د لرغوني یو نان له علمي او هنري لاسته راوړنو سره آشنایي پیداکړئ.

د یونان تمدن د نړۍ د لرغونو تمدنونو هغه مهم مرکز و چې لویدیځې نړۍ ورڅخه الهام واخیست او د خپل کلتور بنسټ یې پرې کېښود.

د یونان لومړنی تمدن د کرت په نامه یادېږي. کرت د لرغوني یونان اړوند ټاپووزمه وه. په ۱۹۰۰ زېږدیز کې د لرغونپوهانو څېړنو په ډاګه کړه چې د کریت په جزیره کې یو پرمختللي تمدن شتون درلود چې د مصر او بین النهرین له تمدنونو سره یې سیالي کوله. له دغې سیمې څخه ګڼ شمېر ډېرین او خاورین آثار، د پخلنځي وسایل او داسې نور آثار ترلاسه شوي چې لرغونتوب یې له ۲۵۰۰- ۱۵۰۰ مخزېږد پورې رسېږي. په کرت کې مرکزي واکمني د ۲۰۰۰ مخزېږد په شاو خوا کې رامنځته شوه چې پلازمېنه یې د کنوسوس ښار و. د کرت تمدن د آریایي قبایلو د یرغل په پایله کې له منځه ولاړ.

**یونانیان**: یونانیان له هغو آریایي قبیلو سره تړاو لري چې له خپل اصلي میشت ځای (آریانا ویجه) څخه د اروپا لور ته ولېږدیدل او د ۲۵۰۰ مخزېږد په شاو خوا کې یونان ته ننوتل. د آریایانو لومړۍ ډله اکینان وو، چې یونان ته ننوتل هغوی د یونان اصلي اوسیدونکي د ځان تابع کړل او نه یوازې یونان بلکې د ایجن سمندرګي ټولې سیمې یې ترلاسه کړې.

د ۱۶ مې مخزېږدې پېړۍ په شاو خواکې د اکینانو له لوري د لومړنۍ واکمنۍ بنسټ کېښودل شو او په مې سن کې سترې او ښکلې ماڼۍ ودانې کړې. د اکینانو تمدن تر لسمې مخزېږدې پېړۍ پورې دوام وکړ.

اکینان په کرنې بوخت وو او د برونزو له وسایلو یې ګټه اخیستله. دغه دوره له میلاده لس پېړۍ وړاندې د دوریانو د یرغل په ترڅ کې پای ته ورسېده او دوریان په لرغوني یونان واکمن شول. دوریانو د کلتور پرمختګ ته پام نه درلود، خو هغه مشهورې حماسي کېسې چې د (الیاد او ادیسه) په نامه یادېږي په همدې دوره کې منځته راغلي دي. دغه کېسې چې د نړۍ په ادبیاتو کې لوړ مقام لري، د ړوند یوناني شاعر هومر په واسطه ویل شوي دي.

## د یونان ښاري دولتونه

په یونان کې د زیاتو غرونو او ټاپو وزمو شتون او همدارنګه قبیلوي تعصبات ددې لامل شول چې یوناني قبایل له یوبل څخه بېل او په خپلواکه توګه ژوند وکړي. په دې توګه په یونان کې ډېر ښاري دولتونه رامنځته شول چې سپارت او اتن یې تر نورو مشهور دولتونه وو. دغو دواړو دولتونو له یو بل سره توپیر درلود. د سپارت وګړو په جګړو کې ډېر شهرت موندلی و، خو د اتن وګړو په دموکراسی او د علم او فلسفې په دودولو کې ډېر شهرت درلود.

د یونان ښاري دولتونو له یو بل سره سیالي او دښمني درلوده. هغوی په دوو ډلو وېشل شوي وو چې د یوې ډلې په سر کې اسپارت او د بلې په سر کې اتن ځای درلود.

په یونان کې کورنیو جګړو چې د پلوپونیز جګړو په نامه یادېږي ډېر وخت دوام وکړ چې په پایله کې یې اسپارتیان بریالي شول، خو هغوی هم د تبس ښاري دولت له لوري مغلوب شول. په دې توګه کورنیو ګډ وډیو یونان ډېر کمزوری کړ. همدغه مهال مقدوني فلیپ چې د یونان په شمال کې د مقدونیې حاکم و، په یونان ولکه پیدا کړه چې دغه کار د فلیپ د زوی مقدوني سکندر د فتوحاتو لپاره لاره هواره کړه. سکندر د ترکیې او مصر له نیولو وروسته فارس ته مخه کړه او له ۳۳۶-۳۲۳ مخزېږد پورې یې په هخامنشیانو برې ومونده او د هند تر شمال پورې وړاندې ولاړ.

د سکندر له مړینې وروسته یوناني ستر واکي تجزیه شوه، چې ورسره رومي امپراتورۍ ته د غوړېدو او پراختیا زمینه برابره شوه.

## کلتور او تمدن

**دین**: د توحید او د یوه خدای ﷻ د عبادت دعقیدې د نشتوالي او د اعتقادي انحراف له امله یونانیانو په ډېرو خدایانو باور درلود او د لرغونې نړۍ د نورو وګړو په څېر یې باور درلود چې آسمان، ځمکه، برېښنا، مینه او ښکلا او پوهه هر یو ځانګړی پیدا کوونکی لري. زیوس د آسمان خدای پاسیدون د سمندر خدای اپولو د لمر خدای او اتینا د بریالیتوب خدای ګڼل کېدل. د یونانیانو په اند د دوی یوشمېر خدایان د الپ په غره کې اوسیدل چې له همدې امله ورزشي سیالۍ د المپیا غره ته څېرمه ترسره کېدلې، د المپیک سیالۍ د هماغه مهال یادګار دی.



د یونان د لرغوني مدنیت یوه بېلګه

یونانیانو له مړیني وروسته پر ژوند باور درلود او د خپلو مړو ترڅنګ یې ځیني وسایل په قبر کې ایښودل.

په یوناني ښارونو کې ګڼ شمېر عبادت ځایونو شتون درلود، چې خلک د دیني مراسمو په موخه ورتلل.

**هنر او معماري**: له لرغوني یونان څخه ډېر آثار لکه مجسمې، لوښې، سکې اوعبادت ځایونه پاتې دي، خو د یونانیانو معماري او مجسمه جوړونه د ډېر شهرت لرونکې ده. هغوی به د خپلو خدایانو او همدارنګه د خپلو واکمنانو لپاره مجسمې جوړولې. هغوی خپلې ودانۍ له ډبرو او لرګیو څخه جوړولې، موسیقي او تیاتر هم په یونان کې ډېر دود درلود.

**علم او فلسفه**: علم په یونان کې ډېر پرمختګ کړی و ځکه چې هغوی له علمي خبرو اترو سره ډېره لېوالتیا درلوده. د علم د پرمختګ یو بل لامل له مصر او کوچنۍ آسیا سره د یونانیانو سوداګریزې

اړیکې وې چې له همدې امله د آسیا او افریقا علمي لاسته راوړنو یونان ته لار موندله او علم ته یې لا زیاته وده ورکوله.

د یونان فیلسوفان په نړۍ کې د ډېر شهرت لرونکي دي، چې د هغوی له جملې څخه سقراط، افلاطون او ارسطو د یادونې وړ دي. سقراط هغه لوی فیلسوف و چې په ښار کې به گرځېده او له خلکو سره به یې خبرې اترې کولې. هغه ډېر زده کوونکي درلودل چې تر ټولو نامتو یې افلاطون دی.



## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د کرت د تمدن، دویمه ډله دې د یونان د ښاري دولتونو او دریمه ډله دې د یونان د کلتور او تمدن په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازی دې نورو ټولگیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- د کرت د جزیرې په اړه څه پوهېږئ؟

۲ - د یونان مشهور ښاري دولتونه کوم وو؟

۳- د یونانیانو د مذهبي عقایدو په اړه معلومات وړاندې کړئ.

٤- د یونان مشهور فیلسوفان څوک وو؟



## له ټولگي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د المپیک د ورزشي سیالیو په اړه معلومات ولیکي او خپلو ټولگیوالو ته دې وړاندې کړي.

# د روم تمدن

په دې لوست کې به د روم د امپراتورۍ د رامنځته کېدو، د لرغوني روم له سیاسي، ټولنیزې او کلتوري وضعې، او همدارنګه دلرغوني روم له هنري برياوو سره آشنايي پیداکړئ.

د روم تمدن په ایټالیا کې متمرکز و. دغه تمدن هغه پل ګڼل کېږي چې د یونان د تمدن لاسته راوړنې له دې ځایه نورو اروپایي هېوادونو ته رسیدلې.

پخوانیو ایټالویانو له یونانیانو څخه الفبا، دیني عقیدې او هنرونه زده کړل چې له همدې امله د ایټالیا نوم یوناني نوم دی. د روم تمدن له میلاد څخه وړاندې په شپږمه پېړۍ کې پرمختیا پیل کړه او د یونان د تمدن له ځوړ وروسته خپلې لوړې پوړۍ ته ورسېد.

د روم ښار په ۱۰۰۰ مخزېږد کې د لاتیوم په سېمه کې جوړ شو. د لرغونو رومیانو د ژبې لاتیني نوم له همدغې کلمې څخه اخیستل شوی دی. هغه مهال د روم یوشمېر میشت قومونه سره یو موټی شول چې د لاتینیانو په نامه یې شهرت پیدا کړ او څه مهال وروسته یې شاهي نظام رامنځته کړ چې تر ۵۰۹ مخزېږد پورې یې دوام وکړ. له شاهي نظام وروسته په روم کې د جمهوري نظام بنسټ کېښودل شو چې د مشرانو جرګه، سنتوري یا سل کسیزه شورا او قبایلي جرګه یې درلوده.

وروسته له هغه چې رومیانو پر ټولې ایټالیا ولکه پیدا کړه د نورو سیمو د نیولو هڅې یې پیل کړې چې په ترڅ کې یې د رومیانو او کارتاژیانو ترمنځ جګړه پیل شوه. دغه مهال کارتاژ (نننی تونس) د مدیترانې پر ټاپو وزمو او د شمالي افریقا په ډېرو سواحلو ولکه درلوده. د رومیانو او کارتاژ جګړې له یوې پېړۍ ډېر دوام وکړ چې په پایله کې رومیان بریالي شول او په ۱٤٦ مخزېږد کې د کارتاژ دولت پای ته ورسېد.

رومیانو خپلو بریاوو ته ادامه ورکړه او د مصر او کوچنۍ آسیا په نیولو سره یې یو پراخه حکومت رامنځته کړ. په دې توګه د روم حکومت د روم په امپراتورۍ بدل شو.

اکتاو هغه شخص و چې د روم د سترواکۍ بنسټ یې کېښود. او له ۲۷ مخزېږد څخه تر ۱٤ زېږدیز پورې یې پر روم واکمني وکړه. له دې وروسته د روم په تاریخ کې یوه نوې دوره پیل شوه چې د

امپراتورۍ د دورې په نامه یادېږي او تر ٤٧٦ زېږدیز پورې یې دوام وکړ. اکتاو یو پیاوړی ستروا‌ک و. د هغه په واکمنۍ کې ډېر اصلاحات رامنځته شول، فساد له منځه ولاړ، قانون او نظم غښتلی شو، نوې محکمې جوړې شوې او د پوستي خدمتونو بنسټ کېښودل شو. له اکتاو وروسته ګڼ شمېر واکمنان واک ته ورسېدل خو ډېری یې بې کفایته وو.

له دریمې زېږدیزې پېړۍ وروسته رومي امپراتوري له ستونزو سره مخ شوه او ځواک یې کمزوری شو. کنستانتین چې د روم امپراتور و د بیزانتوم (قسطنطنیه) ښار یې د خپلې پلازمېنې په توګه غوره کړ. دغه ګام رومي امپراتوري په دوو برخو (ختیځ او لویدیځ روم) ووېشله. لویدیځ روم د بهرنیو بریدونو په ترڅ کې د ځوړ په لور روان شو، خو ختیځ روم ترهغه پایښت وموند چې پلازمېنه یې په ١٤٥٣ زېږدیز کې د ترکي مسلمانانو له لوري فتحه شوه. په دې ډول د نړۍ دغه لویه ستروا‌کي هم له منځه ولاړه.

## کلتور او تمدن

**دین**: رومیانو هم د یونانیانو په څېر په ډېرو خدایانو باور درلود او د هغوی عبادت یې کاوه. مریخ په جګړو کې مرسته کوونکی، جونو د ښځو ساتونکی، مشتري باران ورورونکی او عطارد پیغام رسوونکی خدای ګڼل کېده. په روم کې ډېر عبادت ځایونه ودان شوي وو. په دغه عبادت ځایونو کې به هغو غیب ویونکو شتون درلود چې خلکو پرې باور درلود.

په روم کې د مسیحیت خپرېدو د خلکو په ټولنیز ژوند ډېر اغېز وکړ. مسیحیانو په رومي خدایانو باور نه درلود چې له همدې امله په پیل کې د دولتي مامورینو او کاهنانو له کینې او مخالفت سره مخامخ شول، خو د مسیحیت په پراختیا سره د مسیحي دین نظریاتو د پخوانیو نظریاتو ځای ونېوه او د روم د رسمي دین په توګه وپېژندل شو.

**ټولنیز حالت**: د روم د واکمنۍ د جوړېدو پر مهال، رومي ټولنه له دریو اصلي ډلو، (اصلي رومیان، غیر رومي وګړي او غلامانو) څخه جوړه شوې وه.

د ځمکې د مالکیت او په ټاکنو کې د ګډون حق یوازې لومړۍ ډلې درلود او دولتي چارواکي هم له همدې ډلې ټاکل کېدل، خو د وخت په تېرېدو سره دغه حالت بدلون وکړ او دویمې ډلې هم د




اعتراضاتو او هڅو په پايله کې د لومړۍ ډلې امتيازات ترلاسه کړل. په روم کې د غلامانو حالت ډېر خراب و چې له همدې امله به يې ځينې وخت اخ ودب رامنځته کېده. په رومي ټولنه کې خلک په بېلابېلو دندو بوخت وو. شتمنو طبقاتو خپل ډېری وخت په تياترونو او ورزشي سياليو کې تېراوه. د هغوی کورونه ډېر ستر وو چې د خوب خونه، حمام، پخلنځی او د غلامانو د اوسېدو ځای يې درلود.

**قانون او دولت**: نړۍ ته د روم قوانين او اداري اصول ښه ډالۍ ده. د روم قانون درې څانګې درلودې چې يو يې مدني او کورنی قانون و چې يوازې د رومي اتباعو لپاره رامنځته شوی و. دويم يې د خلکو قانون و چې د ستروا‌کی په ټولو وګړو عملي کېده او بل يې هم طبيعي قانون و چې د محاکمو په پرتله يې له فلسفې سره ډېر کار درلود.

رومي قوانينو د امپراتورۍ له يووالي، د سوداګرۍ په هڅونه او د توليداتو په خپرېدو کې ډېره

مرسته وکړه. د اجراییه او مقننه قواوو لرونکې واکمنۍ بنسټ د رومیانو له خوا کېښودل شو. د جمهوریت غوښتنې نظریې ته هم رومیانو وده ورکړه.

**هنر او معماري**: د هنر او معمارۍ په برخه کې رومیانو ډېر پرمختګ کړی و، خو هنري لاره یې د یوناني هنر تر اغېز لاندې وه چې له همدې امله رومي هنر د یوناني هنر دوام بلل کېده. له لرغوني روم څخه ډېر اثار لکه: لوښي، سکې، وسلې، مجسمې او داسې نور ترلاسه شوي چې د رومي تمدن ځرګندونه کوي. رومیانو د پلونو، مجسمو او ودانیو په جوړولو کې ډېر پرمختګ کړی و چې بېلګې یې لا تراوسه په دغه هېواد کې شتون لري.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دریو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د روم د امپراتورۍ د منځته راتګ په اړه، دویمه ډله دې د رومیانو د مذهب په اړه او دریمه ډله دې د رومیانو د قانون او دولت په اړه بحث وکړي او د هرې ډلې استازي دې نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- د روم د جمهوري نظام په اړه معلومات وړاندې کړئ.

۲- اکتاو څوک و او په واکمنۍ کې یې کوم کارونه ترسره شول؟

۳- رومي ټولنه په څو برخو وېشل شوې وه؟ په اړه یې معلومات وړاندې کړئ.

٤- د روم د قانون په اړه څه پوهېږئ؟ واضیح یې کړئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د مسلمانانو له لوري د ختیځ روم د نیولو په اړه معلومات ولیکي او خپلو ټولګیوالو ته دې وړاندې کړي.

# د امریکا تمدنونه

په دې لوست کې به د امریکا د لرغونو تمدنو نو د سياسي، ټولنيزې، اقتصادي او کلتوري وضعې په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

ډېره موده وړاندې داسې فکر کېده چې د امريکا د تمدنونو لرغونتوب ډېر لنډ او وروستيو پېړيو ته رسېږي. خو د پوهانو څېړنو دا په ډاګه کړه چې انسانانو په امريکا کې له څو زرو کلونو راهيسې ژوند پيل کړی او د پرمختګ بېلابېل پړاوونه يې تېر کړي دي.

د امريکا د لومړنيو ميشتو وګړو په اړه بېلابېل نظريات شتون لري خو ددې نظر پلويان ډېر دي چې د دغې سيمې لومړني وګړي مغول وو چې د سايبريا له لارې الاسکا ته ليږديدلي او ځينې تمدني اثار يې له ځان سره وړي دي. له امريکا څخه ترلاسه شوي آثار څرګندوي چې په لرغونو پېړيو کې ځينو کلتورونو په هغو تمدنونو خپل اغېز پرېښود چې وروسته په سترو واکمنيو بدل شول. د دغه تمدنونو اغېز په مرکزي امريکا کې د ماياياڼو او ازتکانو او سويلي امريکا کې له اينکايانو څخه عبارت دي.

## د مايا تمدن

د مايا تمدن چې تاريخ يې څه ناځه ۱۵۰۰ مخزېږد ته رسېږي، تر نهمې زېږديزې پېړۍ پورې ډېر پرمختګ وکړ او د مرکزي امريکا په ګواتيمالا، مکسيکو، هاندوراس او د يوکاتان په سيمو کې خپور شو. د دغه تمدن پاتې شونې دګواتيمالا په تيکال، پالينکو او بوناماپاك او د هاندوراس په ګوپان سيمو کې موندل شوي دي. په دغو سيمو کې داسې ودانۍ ترلاسه شوي چې په انځورونو ښکلې کړی شوي دي.

ماياياڼو کليزې، الفبا او انځوريز ليک رامنځته کړی و. له صفر او اعدادو سره يې اشنايي درلوده او په شمېر هم پوهېدل. هغوی د کلونو تيريدل په پام کې نيول او د هرې شل کلنې دورې لپاره يې د يادګار په موخه يوه ستنه جوړوله چې کاتون بلل کېده.

ماياياڼو د بېلابېلو خدايانو لکه: د اور خدای، د اورښت خدای، د لمر خدای او د هنر او سولې خدای عبادت کاوه او د هغوی د خوښۍ لپاره يې قرباني کولې. په نهمه مخزېږده پېړۍ کې د مکسيکو درې ته د خلکو نوې ډلې راننوتې او د ماياياڼو تمدن يې له منځه يووړ.

## د ازتک تمدن

ازتکان په نهمه مخزېږده پېړۍ په مکسیکو کې راڅرگند شول. هغوی جگړه مار خلك وو او څه موده وروسته د همدې سېمې واکمنان شول. ازتکانو یوهستره امپراتوري رامنځته کړه چې پر ۳۸ ولایتونو وېشل شوې وه هره برخه یې د یوه والي له لوري اداره کېده.

د ازتکانو پاچا به په عین وخت کې راهب هم وچې د اشرافو، او جنگیالیو د یوې شورا له لوري به ټاکل کېده. د ازتک ټولنه په جنگیالیو، سوداگرو او کسب گرو وېشل شوې وه. هغوی د یوشمېر خدایانو لکه: د لمر خدای عبادت کاوه. او د فلزاتو په ویلي کېدو او له هغو څخه په کار اخیستنې پوهېدل.

د ازتکانو ژبه ناهوت وه چې تر دې مهاله یوه ژوندۍ ژبه ده او لیک یې انځوریز و. په ۱۵۲۱ زېږدیز کې دغه امپراتوري د اسپانویانو له خوا پای ته ورسېده.

## د اینکا تمدن

د اینکا تمدن په یوولسمه زېږدیزه پېړۍ کې د اینکایانو د قبیلې له خوا، چې هغوی هم له آسیا څخه امریکا ته رالېږدیدلي وو رامنځته شو. اینکایانو یوه ستره امپراتوري رامنځته کړه چې د اکوادور، پېرو او چېلي سېمې پکې شاملې وې.

د اینکا واکمن د مذهبي کاهنانو په مرسته په خپل قلمرو کې واکمني کوله او خپل ځان یې د خدای زوی او استازی باله. سیاسي ځواک د پاچا په لاس کې و، خلکو هیڅ واک نه درلود او د پاچا او کاهنانو تر اوامرو لاندې یې ژوند کاوه. د خلکو لپاره ډېر سخت مقررات وضع شوي وو. ځمکه د دولت ملکیت وه، جوار او کچالو د کرنې غوره تولیدات وو کروندگرو د خپلو پیداوارو دریمه برخه ترلاسه کوله. یوه برخه یې دولت ته او یوه برخه یې د امپراتور لپاره بېلوله. صنعتي او کرنیز پیداوار د دولتي کارکوونکو له خوا په خپلو منځو کې وېشل کېدل.

اینکایانو کلیزه درلوده او په معمارۍ، مهندسۍ او لاسي صنایعو کې یې هم ډېر پرمختگ کړی و. د اینکا ښارونه د سترو جوړښتونو لکه ماڼیو، عبادت ځایونو، رسمي گودامونو او جنگي کلاوو لرونکي

وو. هنر او لاسي صنعت هم ډېر وده کړې وه. اينکايانو د ژېړو لوښي، وسلې او له مسو او زرو څخه ښکلې گاڼې جوړولې. هغوی له ازتکانو سره سوداگريزې اړيکې درلودې او خپل صنعتي توليدات يې د ازتک امپراتورۍ ته صادرول.

د اينکا مدنيت د پاتې شونو يو انځور



په ۱۵۳۲ زېږد کال کې هسپانويان د اينکا قلمرو ته راننوتل او د اينکايانو وروستی امپراتور اتاهولپا يې له منځه يووړ او په دوو کلونو کې يې په ټولې امپراتورۍ ولکه پيدا کړه چې په دې ډول دغه امپراتوري هم پای ته ورسېده.



## په ټولگي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دريو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د مايا د تمدن دويمه ډله دې د ازتک د تمدن او دريمه ډله دې د اينکا د تمدن په اړه خپل بحث وکړي او د هرې ډلې استازي دې نورو ټولگيوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- د امريکا لومړني خلک څوک وو؟ په اړه يې معلومات وړاندې کړئ.
۲- د مايا تمدن څه مهال رامنځته شو او په کومو سيمو کې خپور شو؟
۳- د ازتکانو په اړه څه پوهېږئ؟ معلومات وړاندې کړئ.



## له ټولگي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې په دې اړه، چې د امريکا لومړني خلک څوک دي، معلومات وليکي او خپلو ټولگيوالو ته دې وړاندې کړي.

# څلورم څپرکی

## د اسلام تاریخ

دا څپرکی لاندې لوستونه لري:

- د اسلام د راڅرګندېدو پر مهال د نړۍ او عربستان د ټاپووزمې اوضاع
- له کوچنيتوب څخه تر بعثت او له بعثته تر رحلته پورې د حضرت رسول اکرم ﷺ ژوند
- د عقبيې لومړۍ او دويم تړون
- غزوات
- د حديبيې سوله
- د مکې فتح
- حضرت ابوبکر رضي الله عنه
- حضرت عمر رضي الله عنه
- حضرت عثمان رضي الله عنه
- حضرت علی (کرم الله وجهه)
- د خلفای راشدين روښانه دورې ته لنډه کتنه
- امويان
- د امويانو په دوره کې اقتصادي، اداري، کلتوري او پوځي وضعيت
- عباسيان
- د عباسيانو سياسي، اداري او کلتوري اوضاع

## د څپرکي موخې

هيله کيږي چې د دې څپرکي په پای کې به زده کوونکي لاندې موخو ته ورسيږي:

- د اسلام د راڅرګنديدا پر مهال به د نړۍ او عربستان د وضعې، د حضرت محمد ﷺ د بعثت، هجرت او رحلت، دخلفاې راشدينو د ژوندانه او کړو وړو او د اموي او عباسي واکمنانو په اړه معلومات تر لاسه کړي.
- د اسلام د راڅرګنديدا پر مهال به د نړۍ او عربستان وضعه د حضرت محمد ﷺ، راشدينو خلفاوو، اموي او عباسي واکمنانو د دوران او د مهمو پېښو د تحليل ورتيا پيدا کړي.
- د اسلام له سپېڅلي دين، د حضرت محمد ﷺ د خلفاې راشدينو له کړو وړو او د اموي او عباسي واکمنو له ښو صفاتو سره يې مينه او ليوالتيا پيدا شي.

# د اسلام د را څرګندیدا پر مهال د نړۍ
# او د عربستان د ټاپو وزمې اوضاع

په دې لوست کې به د اسلام د مبارک دین د ظهور پر مهال د نړۍ او عربستان د سیاسي، ټولنیزې او کلتوري وضعې په اړه معلومات وړاندې کېږي.

د اسلام د مبین دین له ظهور څخه مخکې د نړۍ پر مخ د کفر، جهالت او ناپوهۍ د تورو وریځو لړۍ خپره وه. په هر ځای کې ظلم و او حق تر پښو لاندې کېده که څه هم د اروپا او افریقا د زیاتو او د لویدیځې آسیا د ځینو برخو خلکو په یهودیت او نصرانیت باور درلود او ځانونه یې د حضرت موسی علیه السلام او حضرت عیسی علیه السلام پیروان بلل، خو دوی هم په دغو ادیانو کې ډېر زیات انحرافات او بدلونونه رامنځ ته کړي وو او اصلي او اساسي لاره یې په ټولیزه توګه پرېښې وه ظلم او بربریت خپل اوج ته رسیدلی و، زور او ځواک د حاکمانو د حکومت چلولو یوازینۍ وسیله وه. د فارس او خراسان خلکو د اور نمانځنه کوله او ظالمو ساساني حاکمانو وربانديې حکومت کاوه. په هند، چین، د خراسان ختیځو برخو او د آسیا په سوېلي سیمو کې بودایي دین دود او د بت لمانځنې بنه یې خپله کړې وه. د مکې اوسیدونکو د بتانو لمانځنه کوله او د ناپوهۍ په اور کې ښکیل وو.



د اسلام نه مخکې د عربو مراسم

جزیرة العرب چې په څو برخو لکه یمن، نجد او حجاز وېشل شوې وه په یمن کې یې حبشیانو او د هغو پلویانو حکومت کاوه او خلک یې د یهودیت، نصرانیت او بت نمانځنې لارویان وو. د حجاز ډېرو خلکو د بتانو نمانځنه کوله. د یهودیانو اونصرانیانو لړکیو هم په حجاز کې شتون درلود. سربېره پردې په جزیرة العرب کې د لمر، سپوږمۍ او ستورو نمانځنه هم دود وه. د عربستان د خلکو کاروبار

سوداګري، کرنه او څارویو ساتنه وه. د دې هېواد زورور په ناوړو کارونو او فساد کې ډوب وو. ښځو په ډېره خوارۍ او غریبۍ کې د ژوندانه ترخې شپې او ورځې تېرولې. په عربستان کې ظلم او تېری خپلې لوړې کچې ته رسیدلی و. همدارنګه یوشمېرخلک د لوړې له ډاره خپلې نجونې ژوندۍ تر خاورو لاندې کولې او د هغوشتون یې ځانونو ته ننګ او شرم ګاڼه. دوی د ښځو شخصیت ته هیڅ درناوی نه درلود او هغوی یې د عادي توکو په څیر اخیستلې اوخرڅولې. هماغه و چې لوی څښتن حضرت محمد مصطفی ﷺ په رسالت او نبوت مبعوث کړ چې په خپلو نه ستړې کېدونکو هلو ځلو او د لوی خدای جل جلاله د هر اړخیزې مرستې په برکت یې د ناپوهۍ تیارې د نړۍ له مخې لرې او پر ځای یې د اسلام د مبارک دین رڼا خپره کړه.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د جزیره العرب د وګړو د ادیانو او دویمه ډله دې دعربستان داقتصادي وضعې په اړه خپل معلومات د خپل آستازي په وسیله نورو ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- عربو د نجونو او مېرمنو په وړاندې څه ډول چلند کاوه؟

۲- ولې الله ﷻ حضرت محمد ﷺ په پیغمبرۍ مبعوث کړ؟

۳- عربو تر اسلام وړاندې په کومو ادیانواو شیانو عقیده درلوده؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د عربو د معتقداتو او ادیانو په اړه د خپل کلي او سیمې له عالمانو او پوهو شخصیتونو څخه معلومات ترلاسه کړي او بیا دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

# د حضرت محمد ﷺ ژوند له کوچنيوالي تر بعثته پورې

په دې لوست کې به د حضرت محمد ﷺ د نسب، د کوچنيتوب د دوران په پيغمبرۍ د مبعوثېدو د څرنګوالي او د مسلمانانو د لومړني هجرت په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

حضرت محمد ﷺ د ۵۷۱ زېږديز کال د اپريل د مياشتې په شلمه چې د ربيع الاول له دولسمې نېټې سره سمون لري- د دوشنبې په سهار دې نړۍ ته تشريف راوړ. د حضرت محمد ﷺ پلار، عبدالله څو مياشتې د مخه تر دې چې حضرت محمد ﷺ دنيا ته راشي وفات شوی و. حضرت نبي کريم ﷺ له زېږېدنې وروسته څلورکاله د بني سعد په قبيله کې د بي بي حليمې سعدې تر روزنې لاندې و. کله چې شپږ کلن شو مور يې بي بي آمنه وفات شوه. له دې وروسته يې پالنه نيکه عبدالمطلب په غاړه واخيسته کله چې اته کلن شو نو نيکه يې عبدالمطلب هم له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې. له هغه وروسته د حضرت محمد ﷺ پالنه د ده د تره ابوطالب په غاړه شوه. تر هغه چې ځوان شو. ابوطالب ته حضرت محمد ﷺ له خپلو زامنو څخه ګران و. پر هغه باندې يې ډېره مهرباني او ځانګړې لورينه د رلوده.

حضرت محمد ﷺ په دولس کلنۍ کې له ابوطالب سره د شام په سفر ولاړ. په شام کې يوه مسيحي ديني عالم بحيرا د حضرت محمد ﷺ له علايمو ومونده چې دی د آخر زمان نبي او رسول دی، نو ځکه يې له ابوطالب څخه وغوښتل چې په ساتنه کې يې ډېره هڅه وکړي.

د حضرت محمد ﷺ عقلي او اخلاقي غوره والی تل هغه له نورو څخه ممتاز کاوه چې د کعبې په دېوال کې د حجرالاسود د ډبرې د کېښودو څرنګوالی يې روښانه دليل دی. الله ﷻ د خپل پيغمبر په پوهې او حکمت سره د اعرابو قبايل له وينې تويونې څخه چې هره شېبه يې انتظار کېده وساتل.

په ځوانۍ کې حضرت محمد ﷺ په مکه کې په نيکو اخلاقو، رښتينولۍ او امانت ساتنې مشهور و، نو ځکه د بي بي خديجې رضي الله عنها چې د قريشو يوه شتمنه مېرمن وه د پام وړ وګرځېد او له حضرت نبي کريم ﷺ څخه يې وغوښتل چې شام ته د هغې د سوداګريز کاروان مشري په غاړه واخلي حضرت رسول اکرم ﷺ دغه بلنه ومنله. کاروان يې شام ته ورساوه او له ډېرې ګټې سره بېرته مکې ته راستون شو.

کله چې قافله مکې ته ورسېده د بي بي خديجې غلام چې له هغه سره په سفر کې مل و حضرت بي بي خديجې رضي الله عنها ته يې د حضرت محمد ﷺ د ښو فضايلو کېسه وکړه. بي بي خديجې له حضرت محمد ﷺ څخه غوښتنه وکړه چې واده ورسره وکړي. حضرت محمد ﷺ دغه بلنه ومنله په دې مهال کې حضرت نبي کريم ۲۵ کلن او بي بي خديجه ۴۰ کلنه وه.

د حضرت محمد ﷺ ژوند او سيرت د ټولو الهي پيغمبرانو د ژوند په تاريخ کې ترټولوښه سيرت دی. د حضرت محمد ﷺ ژوند په ټولوبرخو کې روښانه دی.د حضرت محمد ﷺ د ژوند ټولې پېښې له زيږيدو څخه ترکوچنيتوب،ځوانۍ، له بعثت څخه وړاندې يې کار او له مکې بهر سفرونه يې اوپه لنډه توګه ترهغه چې الله جل جلاله هغه په پيغمبرۍ مبعوث کړ، د لمريه شان روښانه دي.

## له بعثت څخه تر هجرت پورې

له بعثت څخه وړاندې الله جل جلاله د حرا غار ته د حضرت محمد ﷺ ورتګ په زړه پورې کړی و. پيغمبر ﷺ به هر کال يوه مياشت په هغه کې تېروله او د نړۍ د پيدايښت او د الله تعالى پر ستر ځواک به يې فکر کاوه او د وحې تر راتګ او د قرآن کريم تر نزول پورې يې دغه عادت ته دوام ورکاوه. کله چې پيغمبر ﷺ څلويښت کلن شو. د روژې د مياشتې په دولسمه د دوشنبې په ورځ جبرئيل امين د الله جل جلاله وحې حضرت محمد ﷺ ته راوړه په داسې حال کې چې د حرا په غار کې په عبادت بوخت و. يوه پرښته ورته راغله او ورته يې وويل: ولوله: پيغمبر ﷺ وويل لوستی يې نشم. پيغمبر ﷺ وايي چې دغې پرښتې په خپله غېږ کې ونيولم او سخت زور يې راکړ تر هغه چې خپله وړتيا مې له لاسه ورکړه. درې ځلې دغه عمل تکرار شو. په دريم ځل له زور راکولو وروسته پرښتې وويل:

( اقرا باسم ربک الذی خلق......... )

ژباړه: ولوله د هغه پروردګار په نامه چې انسان يې د کلکې شوې وينې له يوې ټوټې څخه پيدا کړ. ولوله چې ستا رب ډېر مهربان او د کريمانو کريم دی. هغه خدای چې د قلم په واسطه



د حراء غار

يې ور زده کړل او انسان ته يې د هغه څه تعليم ورکړ چې نه پرې پوهېدل. له لږ وخت وروسته د حضرت محمد ﷺ نژدې دوستانو حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه حضرت علی (کرم الله وجهه) او په ښځو کې حضرت بي بي خديجې رضي الله عنها د هغه په رسالت ايمان راوړ. د څه وخت له تېرېدو وروسته د بيلابيلو قشرونو خلك په لسګونو تنه د اسلام په دين مشرف شول.

## حبشې ته د مسلمانانو هجرت

حضرت محمد ﷺ د حضرت ارقم رضي الله عنه کور د خپل دعوت مرکز وټاکلی و او په همدې ځای کې يې له خلکو سره ليده کاته کول او خلك يې په پټه د اسلام دين ته رابلل. پټ دعوت درې کاله دوام وکړ. د دې وخت له تېرېدو وروسته حضرت محمد ﷺ د صفا په غونډۍ د اسلام دعوت ښکاره کړ. له دغې پېښې سره سم ابولهب، ابوجهل او نورو مشرکينو د مسلمانانو په ځورونې پيل وکړ. د دې لپاره چې د کفارو ظلم او تېرى له بريده تېر شو، نو ځکه حضرت محمد ﷺ مسلمانانو ته اجازه ورکړه حبشې ته چې پاچا يې نجاشي نومېده او يو عادل شخص و، هجرت وکړي.

د بعثت د پنځم کال د رجب په مياشت کې د لومړي ځل لپاره يو ولس تنو مسلمانانو د څلورو ښځو په ګډون حبشې ته هجرت وکړ. کله چې مشرکين له دې هجرت څخه خبر شول خپل زور زياتی يې نور هم ډېر کړ چې په پايله کې د نبوت په شپږم کال ۸۳ تنو مسلمانانو هجرت ته مخه کړه او حبشې ته ولاړل. د مکې کفار چې څنګه خبرشول مسلمانان د نجاشي د مهربانۍ وړګرځېدلي، د عمرو بن عاص په مشرۍ يې له سوغاتونو سره يو پلاوی حبشې ته ولېږه. خو د نجاشي پاچا د خپلې ځيرکۍ او د مهاجرينو د استازي په واسطه د اسلامي دعوت د حقيقت په پوهېدنې، نه يوازې د مکې د کفارو سوغاتونه رد کړل، بلکې د مهاجرينو ملاتړ ته يې لا ډېر پام واړاوه.

## د طايف سفر

مسلمانان تل د مشرکينو له لورې ځورېدل، يو شمېر يې د کفارو د تېري له امله خپل ژوند له لاسه ورکړ او په پيغمبر ﷺ فضا تنګه شوه.

د بعثت په لسم کال حضرت بي بي خديجه الکبرى رضي الله عنها او ابو طالب چې له هر پلوه د حضرت محمد ﷺ له نژدې دوستانو او ملاتړو څخه وو، وفات شول. دغو دوه پېښو د حضرت محمد ﷺ په

پاک روح باندې دومره اغېزه وکړه چې دغه کال یې د عام الحزن په نوم ونوماوه بیا هم دغو درد ناکو پېښو ونشوکړای چې د دعوت د رسالت د فریضې په سرته رسولو کې یو کوچنی ځنډ رامنځته کړي.
د همدې اصل له مخې حضرت محمد ﷺ د خلکو د دعوت په موخه د رسالت د دندې د تر سره کولو لپاره طایف ته چې مکې ته یو نژدې ښارو سفر وکړ او د خلکو مشران یې اسلام ته دعوت کړل، هغوی نه یوازې د پیغمبر ﷺ دعوت ونه مانه، بلکې خپلو زامنو ته یې دنده ورکړه، چې د حضرت محمد ﷺ په ځورونې پیل وکړي او له ښار څخه یې وباسي.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د حضرت محمد ﷺ د دعوت او دویمه ډله دې حبشې ته د مسلمانانو د هجرت په اړه بحث وکړي.

## پوښتنې

۱- د حضرت محمد ﷺ د نسب په اړه معلومات ورکړئ.
۲- مسلمانانو ولې حبشې ته هجرت وکړ؟
۲- د حضرت محمد ﷺ د دعوت په وړاندې د طایف د خلکو غبرګون څه و؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د خپلې سیمې له پوهو اشخاصو څخه د حضرت محمد ﷺ د ژوند په اړه پوښتنې وکړي او لاسته راغلي معلومات دې په ټولګی کې وړاندې کړي.

# د عقبې تړونونه(بیعت)

په دې لوست کې به زده کوونکي د عقبې د تړونونو او مدينې ته د مسلمانانو د هجرت په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

**الف- د عقبې لومړی تړون**: په تېر لوست کې مو ولوستل چې کله پيغمبر ﷺ د مکې له خلکو څخه مايوسه شو، طايف ته لاړ او د بني ثقيفه قبيله يې اسلام ته دعوت کړه چې هغوی هم ونه مانه او آن حضرت محمد ﷺ يې په ډبرو وويشته. نو حضرت محمد ﷺ د حج پر مهال د عربو بېلابېل قبايل اسلام ته دعوتول تر هغه چې د بعثت په يوولسم کال حضرت محمد ﷺ له شپږ تنو يثربي خذرجيانو سره له مکې بهر د عقبې په نامه يو ځای کې ليده کاته وکړل او اسلام ته يې راوبلل او د قرآنکريم څو آياتو نه يې ورته تلاوت کړل. دغو شپږ تنو اسلام ومانه او ژمنه يې وکړه چې يو کال وروسته به بيا په همدې ځای کې سره ويني. د بعثت په دولسم کال په نوموړي ځای کې دولس تنو يثربو له حضرت محمد ﷺ سره وکتل او په يو لړ موضوعاتو هوکړې ته ورسېدل چې د عقبې د تړون په نامه مشهور شو. د دغه تړون مندرجات په لاندې ډول دي:

هيڅوک او يا شی له خدای جل جلاله سره نه شريکوو. غلا او تېول ناوړه اعمال نه تر سره کوو. خپل اولادونه نه وژنو. دروغ نه وايو. په چا پورې تهمت نه ترو او د خدای جل جلاله د رسول نافرماني نه کوو.

حضرت محمد ﷺ د تړون له لاسليکولو وروسته حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه ته دنده ورکړه چې له دغو دولسو تنو سره مدينې ته لاړ شي. خلک اسلام ته راوبلي او د اسلامي تعليم چارې مخ ته يوسي. د هغوی د مخلصانه هڅو په پايله کې ګڼ شمېر يثرب د اسلام په دين مشرف شول.

## ب- د عقبې دویم تړون

د بعثت په دیارلسم کال ۷۳ تنو نارینه وو له دوه ښځو سره د دریم ځل لپاره په عقبه کې له رسول الله ﷺ سره ولیدل. د دغې کتنې په لړ کې هغوی ژمنه وکړه چې اسلام ته د خلکو د رابللو سر بېره به د خدای له رسول سره هم هر ډول مرسته کوي. دغه تړون د عقبې د دویم تړون په نامه ونومول شو.

د دغه تړون په لړ کې لاندې پرېکړې وشوې:

موږ د خدای جل جلاله د پیغمبر هر حکم ته مثبت ځواب وایو. مالي لګښتونه یې په غاړه اخلو. کله چې حضرت محمد ﷺ مدینې ته تشریف راوړي موږ له هغه سره هر ډول مرسته کوو او له هغه څخه داسې ملاتړ کوو لکه چې له خپل اولاد او دخپلې کورنۍ له غړو څخه یې کوو. موږ د دغو خدماتو په مقابل کې یوازې او یوازې جنت غواړو. دغه بیعت په حقیقت کې د اسلامي حکومت د بنسټ ډبره وه، چې کېښودل شوه.

## هجرت

کله چې حضرت محمد ﷺ د یثرب له خلکو څخه د هر ډول مرستې ژمنه تر لاسه کړه په تعقیب یې د یثرب لور ته د مسلمانانو هجرت پیل شو. او حضرت محمد ﷺ یوه میاشت وروسته له مکې څخه د یثرب لورته هجرت وکړ. د هجرت د پیل پر مهال د حضرت محمد ﷺ کور د مشرکینو له لوری کلابند و. په همدې شپه چې حضرت محمد ﷺ وغوښتل چې له کور څخه بهر شي. حضرت علی رضي الله عنه ته یې دنده ورکړه چې د هغه په بستره کې ویده شي چې په دې ډول کفار غافل شي. حضرت



محمد ﷺ حضرت ابوبکر رضي الله عنه له ځان سره ملګری کړ او د ثور د غره غار ته لاړل. درې ورځې او درې شپې یې هلته تېرې کړې. سره له دې چې کفار د غار تر خولې پورې هم ورسېدل، خو الله تعالی خپل دغه دوه دوستان د کفارو له شر څخه وساتل. په څلورمه ورځ د واړو د یثرب په لور حرکت وکړ. له نهو ورځو شپو وروسته د ربیع الاول په اتمه نېټه د دوشنبې په ورځ قبا ته چې د یثرب په دوه میلی کې پروت دی ورسېدل. په دغه ځای کې یې د لومړني جومات بنسټ کېښود. بیا یثرب ته وخوځېدل.

حضرت نبي کریم ﷺ د بني سالم بن عوف په سیمه کې د جمعې لومړنی لمونځ وکړ او د یوې وینا په لړ کې یې مسلمانان خپلو اصلي دندو ته متوجه کړل او داسې یې وفرمایل: اصلي حاکمیت الله تعالی پورې اړه لري یوازې د هغه عبادت وکړئ او له هغه سره شریک مه راوړئ. خپله حقیقي لارښوونه د الله تعالی کتاب یعنې قران او د هغه د پیغمبر سنت ویولئ او هغه په ځان حاکم کړئ. د الله جل جلاله د ښمنان خپل د ښمنان وګڼئ او د دین د غلبې په موخه په جهاد منګولې ولګوئ. ستاسو اسلامي نوم مسلمان دی او تاسو ټول مسلمانان او د یوې ټولنې افراد یاستئ چې د اسلامي امت په نامه یادېږئ. له دې وروسته د مهاجرینو او انصارو تر منځ د وروروليي تړون رامنځته. او د اسلام د مبارک دین له برکته د اوس او خزرج د قبیلو لس کلنې جګړې له منځه ولاړې او په ورورولۍ بدلې شوې.

نسبي، سیمه ییز او توکمیز امتیازات له منځه ولاړل. پر ځای یې تقوی او ښه عمل د برترۍ معیار وګرځېد. او د یوه ۵۲ ماده ییز منشور په لړ کې عملاً د یوه اسلامي حکومت بنسټ کېښودل شو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د عقبې د لومړي تړون او دويمه ډله دې یثرب ته د مسلمانانو د هجرت په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- د عقبې لومړي تړون کوم موضوعات درلودل؟

۲- د عقبې دويم تړون په کوم کال را منځته شو؟

۳- حضرت محمد ﷺ د جمعې لومړنی لمونځ چېرته اداکړ؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې مدینې ته د حضرت محمد ﷺ د هجرت په اړه د خپلې سیمې له پوهانو څخه معلومات تر لاسه کړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# غزاګانې

په دې لوست کې د غزاګانو، د هغو د پېښېدو د لاملونو او پایلو په اړه معلومات وړاندې کېږي.

وروسته له هغه چې پیغمبرﷺ او مسلمانان په مدینه منوره کې ځای په ځای شول. او د لومړني اسلامي دولت پښې ټینګې شوې. د اسلام د دښمنانو مخامخ دښمنۍ هم پیل شوې چې په پایله کې یې د مسلمانانو او کفارو تر منځ غزوې پیل شوې.

مؤرخین او سیرت لیکوونکي هره هغه جګړه چې د مسلمانانو او کفارو تر منځ شوې وي او په هغه کې د الله تعالی رسول ګډون کړی وي د غزوې په نامه او هره هغه جګړه چې پیغمبرﷺ پکې ګډون نه وي کړی د سریې په نامه یادوي.

په مدینه کې د اسلامي حکومت تاسیس، کفار په عمومي توګه او د مکې مشرکین په ځانګړې توګه له ویرووونکي حالت سره مخامخ کړل او د دې په لټه کې شول چې په هرې ممکنې وسیلې سره د مسلمانانو د پرمختګ مخه ونیسي. مسلمانان هم پوهېدل که چېرې جهاد ونه کړي له زوال سره مخامخ کېږي، نو ځکه دوی هم د الله ﷻ له امر سره سم دفاعي تیاری نیوه او په غزاګانو یې پیل وکړ چې له مهمو څخه یې په لاندې ډول یادونه کېږي.

## ستاسو د زیاتو معلومات لپاره

حضرت محمدﷺ د هجرت په لومړي کال په مدینې کې د ځای په ځای کېدو وروسته د ژوندانه د چارو د تنظیم په موخه د بېلا بېلو قبایلو تر منځ یو تړون لاسلیک کړ چې په تاریخ کې د مدینې د منشور په نامه یادېږي. دغه تړون انسانیت او ټولنیز عدالت ته د احترام ښکارندونه کوي چې ځینې مواد یې په لاندې ډول وړاندې کېږي:

۱- له تفرقې پرته د اسلامي امت یووالی.

۲- په انساني کرامت او حقونو کې د مسلمانانو برابري.

۳- د ګناه، تېرې او یرغل د پای ته ر سولو په موخه له مسلمان امت سره همکاري.

٤- د اسلامي دولت له باغیانو سره جګړه او له هغوی سره له همکارۍ څخه ډډه.

٥- په غیر مسلمانانو لازمه ده چې د اسلامي دولت په لګښتونو کې برخه واخلي.

٦- په غیر مسلمانانو لازمه ده چې د بهرنیو خطراتو د له منځته وړلو لپاره د جګړې په حالت کې له مسلمانانو سره مرسته وکړي.

۷- په اسلامي دولت لازمه ده چې په غیر مسلمانانو باندې د ظلم او تېرې مخه ونیسي دا کار د هغو مسلمانانو په وړاندې، چې تېری پرې کېږي، هم عملي کېږي.

۸- د ګنهکار او ظالم ملاتړ نه کېږي.

۹- د همکارۍ، پرهېزګارۍ او ښو کړنو پر بنسټ ټولنه رامنځته کېږي، نه د ګناه او یرغل پر بنسټ.

۱۰- هیڅوک د بل چا په ګناه نه نیول کېږي او حدود یوازې په جنایتکار باندې پلي کېږي.

## د بدر غزا

دا غزا د هجرت په دويم کال د روژې د مياشتې په اوولسمه نېټه پېښه شوه. لامل يې دا و چې مسلمانانو غوښتل د قريشو سوداګريز کاروان، چې له شام څخه د مکې لور ته روان و، تر لاسه کړي. پيغمبر ﷺ د جګړې اراده نه درلوده، خو د کاروان مشر ابوسفيان قريشو ته پيغام ولېږه چې د هغه کاروان د مسلمانانو له تعرض څخه وساتي، نو له دې امله زر تنه قريش چې شپږ سوو تنو يې زغرې په غاړه درلودې له سلو آسونو چې سورويې هم زرې لباس درلود او اويا اوښانو سره جګړې ته تيار شول. سيرت ليکوونکي په يوه خوله دي چې: دغه لښکر سره خوش آوازه کنيزانو او ساز يانو چې دريايي وهلې هم ملګرتيا کوله. د مسلمانانو شمېر ۳۱۳ تنو ته رسيده چې زياتره يې انصار وو دغه لښکر سره دوه يا درې اسونه او اويا اوښان هم وو چې په نوبت سره مسلمانان پرې سورېدل. که څه هم لږ وخت وروسته د قريشو مشرکينو اطلاع تر لاسه کړه چې کاروان ژغورل شوی، خو سره له دې يې هم جګړې ته مخه کړه او په غرور او تکبر سره يې وويل غواړو مسلمانانو ته سزا ورکړو او مغلوب يې کړو. کله چې د واړه لښکر ي له يوبل سره مخامخ شوې د خدای رسول مخکې له دې چې جګړې ته داخل شي، و غوښتل له خپلو يارانو، په تېره له انصارو څخه، مشوره وغواړي. ټولو مهاجرينو د غزا مشوره ورکړه. کله چې انصار وپوهېدل چې پيغمبر زموږ نظر غواړي. سعد بن معاذ د انصارو په استازيتوب وويل: ای رسول الله موږ په تا ايمان راوړ او د ستا نبوت مو تصديق کړ او شاهدې مو ورکړه څه شی چې تا راوړي حق دي. ستا د فرامينو د اطاعت ژمنه موکړې. ای د خدای رسوله په هغه څه چې غواړې په لور يې حرکت وکړه. موږ ټول له تا سره يو. نورو هم د سعد په څېر خبرې وکړې. دغو خبرو په پيغمبر ﷺ کې بې کچه خوښي رامنځته کړه او ويې ويل: د الهي برکت په پناه سره حرکت وکړئ. په تاسو دې زېرې وي چې الله تعالی له دغو دوو څخه ديوې ژمنه را سره کړې يا کاروان او يا د قريشو په جنګي ځواکونو بريا چې د کاروان د نجات لپاره راغلي دي په دې ډول جګړه ونښته. په دې غزا کې د ابوجهل او ځينو نورو مشرانو په ګډون د مشرکانو اويا تنه ووژل شول.




اويا تنه نور اسيران شول.

پيغمر ﷺ امر وکړ چې وژل شوي خښ کړئ او مدينې ته ستانه شئ او له خپلو يارانو سره يې د اسيرانو د برخليک په اړه مشوره وکړه.

## د احد غزا

دا غزا د هجرت په دریم کال پېښه شوه. قریشو د بدر غزا د انتقام په موخه درې زره تنه، چې په زرې جامو سمبال وو، له دوو سوو آسونو او درې زره اوښانو سره د جګړې لپاره چمتو کړل او په مدینه کې د احد د غره په سیمه کې جګړې ته تیار شول. حضرت محمدص د جګړې نقشه داسې جوړه کړه چې د اسلامي لښکر شا د احد غره ته او مخه یې د دښمن لورته وي. حضرت عبدالله بن جبیر ﷺ ته یې دنده ورکړه چې له پنځوسو تنو غشي ویشتونکو سره د غره له لورې چې د جبل الرماة په نامه یې شهرت درلود، د مسلمانانو ساتنه وکړي او د بریالیتوب او یا ماتې په صورت کې هم دغه ځای پرې نږدي. حضرت محمد ﷺ د سپارو قوماندانې حضرت زبیر بن عوام ﷺ ته او د پلیو قومندانې حضرت حمزه (رض) ته وسپارله او حضرت مصعب بن عمیر ﷺ یې بیرغچي په توګه وټاکه. جګړه ونښته چې په پایله کې یې کفارو ماتې وخوړه او تېښتې ته یې مخه کړه. مسلمانان د غنیمتونو په راغونډولو بوخت شول. د احد په غره کې د ځای پرځای شویو څخه هم زیاتره راغلل چې له دغو غنایمو څخه بې برخې نشي. خالد چې د احد غر خالي ولید، له هماغې لارې له خپلو سپارو جنګیالیو سره راغی. حضرت عبدالله بن جبیر ﷺ او څو تنه نور یې چې ورسره پاتې وو په شهادت ورسول او د شا له لوري یې پر مسلمانانو چې پر غنیمتونو بوخت وو یرغل وکړ. او مشرکین په دې بریالی شول چې ځانونه حضرت محمد ﷺ ته ورسوي. د هغو له خوا ډېرې ویشتل کېدې چې له امله یې د حضرت محمد ﷺ مخ ټپي شو او مبارک غاښ یې په شهادت ورسېد او د حضرت حمزه ﷺ په شمول اویا تنه مسلمانان په شهادت ورسېدل. په دې غزوه کې د مسلمانانو شمېر ۷۰۰ تنه وو.



د احد غر

## د بني نضیر غزا

بني نضیر یوه یهودي قبیله وه چې مدینې ته نژدې اوسېدله او د خزرج له قبیلې سره یې تړون درلود. له مسلمانانو سره یې د سولې تړون کړی و، خو له دې امله چې خیانت او شرارت د یهودیانو له برخلیک سره یو ځای دی او د دوی په زړونو کې ریښې لري، هغوی یې پرې نښودل چې په خپلې ژمنې وفا وکړي.

یوه ورځ د خدای جل جلاله پیغمبر او څو تنه یاران یې په بني نضیر کې وو. پیغمبر ﷺ د یوه کور دیوال ته ډډه لګولې وه. یهودیانو د هغه د وژلو دسیسه جوړه کړه او غوښتل یې چې د کوټې له بام څخه یوه لویه ډبره په هغه ور وغورځوي او د پیغمبر ﷺ ژوند پای ته ورسوي، پیغمبر ﷺ د وحې له لارې د هغو په دسیسې پوه شو، په چټکۍ سره له خپل ځای څخه پورته شو او د ښمن ته یې داسې وښوده چې کوم کارته ځي.د مدینې په لور روان شو او یاران یې هم ورپسې ورغلل. له دې وروسته پیغمبر ﷺ ، محمد بن مسلمه له داسې پیغام سره بني نضیر ته ولېږه:

له هېواد څخه مې وځئ. تاسو نشئ کولای چې له ما سره په مدینه کې و اوسېږئ، ځکه تاسو خیانت وکړ او په ژمنه ونه درېدئ.

محمدبن مسلمه د پیغمبر ﷺ د فرمان له ابلاغېدو وروسته هغو ته لس ورځې وخت ورکړ چې په دغه وخت کې سیمه پریږدي.

بني نضیر د پیغمبر ﷺ د اخطار په اورېدلو سره د سېمې پرېښودلو ته تیار شو، خو د منافقانو مشر عبدالله بن ابي ورته پیغام ورولېږه چې سیمه پرې نږدي او له دې سربیره یې وعده ورکړه چې دوه زره تنه به د هغو د دفاع او مرستې لپاره هم ورولېږي.

بنی نضیر ددغه پیغام په اوریدلو سره له خپلې پریکړې څخه واوښتل، خپل سنګرونه یې کلک، د خپلې سېمې له پریښودو څخه یې ډډه وکړه او د خدای رسول ﷺ ته یې پیغام ولېږه چې خپله سېمه نه پرېږدي.

حضرت محمد ﷺ له خپلو یو شمیر یارانو سره د بني نضیر په لور حرکت وکړ او غزوه پېښه شوه چې په پایله کې یې بني نضیر ماتې وخوړه او د ځانګړو شرایطو لاندې چې حضرت محمد ﷺ د هغو لپاره وضع کړې وو، سېمه یې پرېښوده.

## د خندق غزوه

یهود بني نضیر چې د ترون له سرغړونې له امله د مدینې څخه ایستل شوي او په خیبر کې ځای په ځای شوي وو، له مسلمانانو سره ډیره کینه درلوده. له دې امله چې مسلمانانو سره یې د جګړې وړتیا نه درلوده، خپل مشر حیی بن اخطب یې مکې ته ولېږه چې د مکې کفار او د غلطفان قبیله د مسلمانانو په وړاندې جګړې ته وهڅوي هغوی په خپل کار کې بریالي شول. د هجرت په پنځم کال د ذوالقعدې په میاشت کې لس زره تنه د ابوسفیان په مشرۍ د مدینې په لور په حرکت کې شول. حضرت محمد ﷺ په مدینه منوره کې د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه په مشورې د ۱۲ زره زراع (ګزو) په اوږدوالي د خندق په کیندلو پیل وکړ. په خپله حضرت محمد ﷺ د خندق په کیندلو کې برخه واخېسته. کله چې د مکې کفار مدینې ته ورسېدل، د خندق د کیندلو کار بشپړ شوی و. د مسلمانانو لپاره له یوې خوا خندق او له

نورو لورو د خرماوو باغونه ښه سنګرونه وو چې د کفارو د یرغل خنډ ګرځېدل، خو یهود بني قریظه له مسلمانانو سره تړون درلود او کولای یې نشوای چې د مسلمانانو په ضد عمل وکړي، خو حیی بن اخطب په پای کې په دې بریالی شو چې د بني قریظه مشر، کعب بن اسد وهڅوي چې له مسلمانانو سره خپل تړون له منځه یوسي. دغه کار د مسلمانانو د پریشانۍ لامل شو. په همدې وخت کې حضرت نعیم بن مسعود رضي الله عنه د اسلام په دین مشرف شو. کفار د هغه له مسلمانېدو خبرنه وو. هغه له پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه اجازه واخېسته چې له رواني جګړې څخه په استفادې سره کفار متفرق کړي. نوموړی بني قریظه ته ورغی او ورته یې وویل!

که چېرې قریش ماتې وخوري مکې ته ځي، تاسې به چېرته لاړشئ؟ بیا یې د نصیحت په ډول ورته وویل څو تنه د قریشو یرغمل ونیسئ، چې تاسو یوازې پرې نږدي. وروسته د مکې مشرکین او بني غطفان ته ورغلل او ورته یې وویل چې بني قریظه له خپل تعهد څخه چې تاسو سره یې کړی و، پښیمانه شوي.

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره یې لیده کاته کړي او غواړي چې ستاسو څو تنه تر لاسه کړي او هغه ته یې وسپاري. لنډه دا چې بني قریظې د شنبې د ورځې په مناسبت جګړه ونه کړه او له قریشو څخه یې څو تنه د یرغملو په توګه وغوښتل چې د هغو په وفادارۍ ډاډمن شي. د حضرت نعیم رضي الله عنه خبرې په دې اړه ډېرې ښې تمامې شوې. د بني قریظه له لوري د یرغملو غوښتنې، د قریشو او غطفانیانو بدګوماني ډېره کړه او د هغو دغه عمل د مکې مشرکین ناهیلي کړل. په همدې مهال د خدای جل جلاله په امر یو شدید طوفان چې خاورې او ورې شګې ورسره وې پیل شو. دغه طوفان دومره شدید و چې د مشرکینو او کافرانو، دیګونه، خیمې او ټول شیان یې چپه کړل. دغې پېښې کفار سخت وارخطا کړل. په پای کې ابوسفیان حکم وکړ چې لښکر دغه ځای کې پرېږدي او مکې ته ستانه شي په دې ډول بری د مسلمانانو په برخه شو.

## د بني قريظه غزا

د ا غزا د خندق (احزابو) د غزا په تعقيب په پنځم هجري کال کې پېښه شوې ده: وروسته له هغه چې حضرت محمد ﷺ د يهوديانو خيانت او له قريشو او نورو سره د هغو پيوستون وليده او آن د احزابو په جګړه کې دغې خاينې قبيلې له پيغمبر ﷺ سره خپل تړون مات کړ. له دې امله چې دغه خاينه قبيله له رسول اکرم ﷺ سره په مدينه منوره کې اوسېده، نو له هغو څخه د لوی شر انتظار کېده. که چېرې داحزابو غزا پای ته نه وای رسيدلې د هغو له لورې مسلمانان له لوی ګواښ سره مخامخ کېدل. هماغه و چې پيغمبر ﷺ هوډ وکړ چې دغه خاينان وټکوي او د جهاد او دعوت مرکز، مدينه منوره د هغو له شتون څخه پاکه کړي ترڅو په راتلونکې کې داسې شرايط پيدانشي چې هغوی په مسلمانانو يرغل وکړي.

حضرت محمد ﷺ د الله تعالی له حکم سره سم له درې زره کسيزه لښکر سره د بني قريظه په لور حرکت وکړ او پنځه ويشت ورځې يې هغوی په کلابندۍ کې وساتل چې په پايله کې يهوديان تسليم شول. حضرت محمد ﷺ د هغوی په منځ کې سعد بن معاذ د حاکم په توګه وټاکه. حضرت سعد د بني قريظه په اړه خپله پرېکړه صادره کړه.

پيغمبر ﷺ د سعد بن معاذ پريکړې ته عملي بڼه ورکړه او د يهوديانو د سيسې يې، چې موخه يې د پيغمبر ﷺ او په مدينه کې د اسلامي دعوت له منځه وړل وو، پای ته ورسولې.

### په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دربو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د بدر غزا، دويمه ډله دې د احد او بني نضير د غزاګانو او دريمه ډله دې د خندق او بني قريظې د غزاګانو په اړه بحث وکړي.

### پوښتنې

۱- د بدر په غزا کې څو تنه کفار ووژل شول؟
۲- د احد د غزا لامل روښانه کړئ.
۳- د خندق په غزا کې د کفارو د ماتې لامل څه و؟ په لنډه توګه يې تشريح کړئ.

### له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د احزابو، بني نضير او بني قريظه د غزاګانو د پايلو په اړه له منابعو، د مسجد له امامانو او پوهانو څخه معلومات ترلاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د حديبيې سوله- بيعت الرضوان

په دې لوست کې به د حديبيې د سولې او د هغې د موادو او هم د خيبر او موته د غزاګانو په اړه معلومات وړاندې شي.

حضرت محمد ﷺ د هجرت په شپږم کال د بيت الله د زيارت او د عمرې د اداکولو په موخه له (۱٤۰۰) تنو سره د مکې په لور روان شو. مکې ته نژدې قريشو د مسلمانانو لاره نيولې وه او پرې يې نښودل چې عمره وکړي. پيغمبر ﷺ، حضرت عثمان رضي الله عنه چې د مکې قبيلوته د درناوي وړ شخص و، د استازي په توګه د مکې خلکوته ورولېږه ترڅو هغوی وپوهوي چې مسلمانان د جګړې لپاره نه، بلکې د عمرې د اداکولو لپاره راغلي دي. قريشو له ټاکلي وخت څخه د ډير وخت لپاره حضرت عثمان رضي الله عنه وساته. له دې امله داسې آوازه خپره شوه چې حضرت عثمان رضي الله عنه يې په شهادت رسولی دی. دې موضوع پيغمبر ﷺ وهڅاوه چې له قريشو سره د جګړې لپاره ځان چمتو کړي. په همدې اساس حضرت محمد ﷺ په داسې حال کې چې په حديبيه کې تر يوې ونې لاندې ولاړ و، د جګړې په اړه له مسلمانانو څخه بيعت واخيست. دغه بيعت په تاريخ کې د بيعت الرضوان په نامه يادېږي. کله چې کفار د مسلمانانو له دې پريکړې څخه خبر شول د مکې مشرکينو سهيل بن عمرو د يوه پلاوي په مشرۍ پيغمبر ﷺ ته ورولېږه. خبرې اترې پيل شوې او دواړه اړخونه په يو تړون سلا شول چې په لاندې ډول دی:

۱- دواړه اړخونه بايد د لسو کالو لپاره سوله وکړي او له يو بل سره جګړه ونه کړي.

۲- حضرت محمد ﷺ دې له خپلو اصحابو سره سږ کال بېرته وګرځي، حج دې نه کوي. راتلونکی کال دې راشي او هغه هم په داسې حال کې چې له توري پرته ورسره بل شی نه وي او هغه هم په تيکې کې وي.

۳- له قريشو پرته د عربو هره قبيله له حضرت رسول اکرم ﷺ سره د اړيکو د ټينګولو اختيار لري.

بسم الله الرحمن الرحيم

# إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا(۱)

٤- که چېرې له قریشو څخه مسلمانانو ته چاپناه ورورېه، مسلمانان باید هغه بېرته ورته وسپاري. خو که چېرې له مسلمانانو څخه د مکې کفارو ته چا پناه ورورېه، حضرت محمد ﷺ یې د غوښتنې حق نه لري.

دغه سوله د حدیبیې په مقام کې وشوه، چې په قرآن کریم کې د فتح مبین په نامه یاده شوې. ددغه تړون یوه مهمه ګټه دا وه چې مسلمانان د قریشو له لوري په امن کې شول او وخت یې ترلاسه کړ چې خپل پام ټولو عربي قبایلو ته واړوي.

د حدیبیې له سولې وروسته حضرت محمد ﷺ د اصحابو په واسطه د روم قیصر، د ایران شاه، د مصر عزیز مقوقش، د حبشې پاچا نجاشي او دیمامه او شام مشرانو ته بلنلیکونه ولېږل او هغوی یې د اسلام مبارك دین ته راوبلل. په پایله کې د حبشې، عمان او بحرین پاچاهانو دغه دعوت ومانه، خو د ایران پاچا (خسرو پرویز) لیک څېرې کړ. ځینو یې چوپتیا اختیار کړه، خو حارث غساني نه یوازې دعوت ونه مانه. بلکې د حضرت رسول اکرم ﷺ استازی شجاع بن وهب یې هم په شهادت ورساوه چې همدغه غیر انساني حرکت د موته د جګړې لامل وګرځېد.

## د خیبر غزا




د اووم هجري کال د محرم په میاشت کې وروسته له هغه چې حضرت محمد ﷺ د مکې د کفارو له لوري ډاډمن شو، ویې غوښتل تړون ماتوونکو ته سزا ورکړي. له دې امله یې یو لښکر چمتو کړ او د شپې له خوا یې له لښکر سره ځان رجیع ته ورساوه. کله چې سهار شو یهودیان خپلو کارونو ته تلل او مسلمانان خیبر ته ورسېدل. یهودیانو چې مسلمانان ولېدل تېښته یې وکړه او خپلو کلاګانو ته یې پناه یووړه: غطفانیانو غوښتل چې له هغو سره مرسته وکړي، خو ویې لېدل چې د رجیع دره د مسلمانانو په ولکه کې ده او خیبر ته د رسېدو بله لار هم نشته، نو له خپلې پرېکړې شخه تېر شول. د خیبر کلاګانې د مسلمانانو، په تېره بیا د حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه د سرښندنو او هڅو په پایله کې فتح شوې. په پایله کې د خیبر یهودیان تسلیم شول. د خیبر له غزا څخه د حضرت محمد ﷺ د بېرته ستنېدو په بهیر کې د قریشو دوه تنه مشران او اتلان خالدبن ولید او عمروبن عاص پیغمبر ﷺ ته راغلل او د اسلام د منلو اعلان یې وکړ.

## د موتې غزا

غسانیانو د حضرت محمد ﷺ استازی وژلی و او له بل لوري ددې وخت را رسېدلی و چې هغوی یو ځل بیا د اسلام مبارک دین ته راوبلل شي. له دې امله حضرت محمد ﷺ د هجرت په اتم کال د

هغوی د ځېلو په موخه درې زره کسيز لښکر د حضرت زيد بن حارث ﷺ په مشرۍ ولېږه او ورته يې وويل که چېرې حضرت زيد ﷺ شهيد شو، حضرت جعفر ﷺ دې د لښکر مشري په غاړه واخلي او که هغه هم شهيد شو بيادې حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ د لښکر مشري په غاړه واخلي.
کله چې مسلمانان د شام هېواد، د موته په سيمه کې د اعرابو او روميانو له ګډ لښکر سره مخامخ شول، جګړه پيل شوه. د اسلامي لښکر قوماندانان يو په بل پسې په شهادت ورسېدل. په پای کې اسلامي لښکر سيف الله يعنی خالد بن وليد ﷺ د خپل قومندان په توګه وټاکه. هغه خپل تيت او پرک لښکر يو ځل بيا را غونډ او منظم کړ.
تر دوو ورځو سختو جګړو وروسته يې د غره لمنې ته پناه يووړه او دښمن هم له جګړې څخه لاس واخيست. په پای کې د اسلام لښکر مدينې ته ستون شو.



## په ټولګي کې فعاليت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي. لومړۍ ډله دې د حديبيې د سولې او دويمه ډله دې د خيبر دغزا په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- بيعت الرضوان څه مفهوم لري؟ معلومات ورکړئ.
۲- د حديبيې له سولې وروسته حضرت محمد ﷺ کوم پاچاهان د اسلام دين ته راوبلل؟
۳- د موته د غزا لامل څه و؟ بيان يې کړي.



## له ټولګي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د حديبيې د سولې د ګټو په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د مکې مکرمې فتح

په دې لوست کې به د مکې د فتحې، د حنين د غزوې د منځته راتلو د څرنګوالي، حجة الوداع او د حضرت محمد ﷺ د رحلت په اړه معلومات وړاندې شي.



مکه معظمه

د مکې خلکو د هغه تړون له مخې، چې د هجرت په شپږم کال يې له مسلمانانو سره تړلی و او د هغې له مخې يې بنايي د خزاعې له قبيلې سره چې د مسلمانانو سره يې تړون کړی و جګړه نه وای کړې او مسلمانانو هم بايد د مکې خلک او د هغو تړون کوونکو ته مزاحمت نه کولای، خو بني بکر، د قريشو په مرسته د بني خزاعه څو تنه وګړي ووژل. له همدې امله بني خزاعه له مسلمانانو څخه د مرستې او ملاتړ غوښتونکي شول. نو حضرت رسول اکرم ﷺ پوه شو چې قريشو د سولې تړون مات کړی. په دې توګه لس زره کسيزه لښکر يې چمتو او د مکې په لوري يې حرکت وکړ.

کله چې د مکې خلک له دې پېښې څخه خبرشول، سخت وارخطا شول، ابوسفيان او د قريشو زياتره مشران حضرت محمد ﷺ ته تسليم شول. حضرت محمد ﷺ پر هغوی مهرباني وکړه او هغوی يې تر خپل حمايت لاندې ونيول. سربېره پردې داسې امتيازات يې ابوسفيان او نورو ته ورکړل چې اصلاً هغوی يې فکر هم نه کاوه، حضرت محمد ﷺ وفرمايل: ((هر څوک چې کعبې شريفې ته او يا د ابوسفيان کورته پناه يوسي او يا په خپلو کورو کې پاتې شي او خپلې دروازې له شا څخه وتړي په امن کې دي.)) په دې لړکې کومه مهمه جګړه پېښه نه شوه. پيغمبر ﷺ مکې ته له ننوتلو وروسته،

لومړی طواف وکړ او بیا یې د مکې د شاوخوا درې سوه او شپیته بتان له منځه یووړل وروسته کعبې شریفې ته ننوت او دوه رکعته لمونځ یې اداکړ. له لمانځه څخه وروسته د کعبې شریفې په دروازه کې ودرید. قریش منتظر وو چې پیغمبر ﷺ څه کوي؟ د هغه د خبرو له جملې څخه چې د خدای ﷻ رسول وکړې یوه یې داوه: ((اې قریشو! تاسو څه گمان کوئ چې زه به ستاسو په وړاندې څه وکړم؟))
قریشو وویل:

((یوازې خیر او ښېگڼه، ته مهربان ورور او مهربان وراره یې)) رسول الله ﷺ وفرمایل:

زه نن هغه څه چې تاسو ته وایم، یوسف علیه السلام پخوا خپلو وروڼو ته ویلي وو.

نن تاسو ته سزا نشته ځئ، ټول آزاد یاست وروسته له دې اعلانه د مکې خلکو ته داسې خوښي وربه برخه شوه لکه چې اوس نوي زیږیدلي وي.

وروسته خلک په صفا کې را ټول شول چې پیغمبر ﷺ ته بیعت وکړي.

رسول الله ﷺ د صفا په غره کې کېښناست او د هغوی بیعت یې د الهي فرامینو څخه د اطاعت په بنسټ ومانه.

## د حنین غزوه

د مکې له فتحې وروسته، حضرت محمد ﷺ د مسلمانانو پورې د اړوندو چارو د ترتیب او تنظیم په موخه ۱۵ ورځې په مکه کې پاتې شو. په همدې مهال خبر ورسېد چې د هوازن قبیله د مالك بن عوف په مشرۍ د ثقیف د قبیلې په مرسته جګړې ته چمتو ده.




خپلې ښځې، ماشومان او مالونه یې هم د جګړې میدان ته راوړي دي، تر څو د هغوی شتون د جګړې انگېزه په دوی کې پیاوړې کړي او ماته و نه مني. حضرت محمد ﷺ له ۱۲ زره تنو اصحابو سره چې دوه زره تنه یې نوي د اسلام په مبین دین مشرف شوي وو، د هغوی د له منځه وړلو په موخه ورغی.

کله چې دا لښکر د حنین تنگي ته

ورسېد، دښمن په کمین کې ناست و. د هوازن جګړه مارانو ناڅاپه پر مسلمانانو یرغل وکړ. مسلمانان ددې یو ناڅاپي یرغل له امله له ماتې سره مخامخ شول، حضرت محمد ﷺ چې د لښکر تر شاه تشریف درلوده حضرت عباس رضي الله عنه ته وویل چې په لوړ غږ مسلمانان جهاد ته راوبولي. د دې غږ د اورېدو له امله مسلمانان یو ځل بیا سره را ټول شول او په کفارو یې یرغل وکړ، چې له امله یې په دې وخت کې دښمن خپلې ښځې، مالونه او اولادونه ځای پرځای پرېښودل او خپله تېښتې ته اړشول او خپلې پښې یې سپکې کړې. مالک د هوازن د قبیلې مشر طایف ته وتښتېد. طایف هم د مسلمانانو له خوا کلابند شو او وروسته له څه مودې پیغمبر ﷺ د کلابندۍ له دوام څخه لاس واخیست او مکې ته ستون شو. له څه مودې څخه وروسته د هوازن خلکو د مخالفت څخه لاس واخیست او پیغمبر ﷺ ته تسلیم شول او ایمان یې راوړ. پیغمبر ﷺ هم هغه ټول غنیمتونه چې د حنین په جګړه کې یې له هغوی څخه لاس ته راوړي وو، بېرته ورکړل.

## د تبوک غزوه

د هجرت په نهم کال کې پیغمبر ﷺ ته اطلاع ورسېده چې د روم امپراتورۍ څلوېښت زره کسیزه لښکر د نوي جوړ شوي اسلامي دولت د له منځه وړلو په موخه د جګړې لپاره چمتو کړې دی، ځکه د هجرت په نهم کال د رجب په میاشت کې یې ۳۰ زره کسیز لښکر د حضرت رسول اکرم ﷺ په مشرۍ د تبوک په لور روان شو. کله چې دغه لښکر تبوک ته ورسېد، رومیانووېرېدل د مقابلې جرات یې په ځان کې ونه لیده او هر لوري ته خپاره شول.

د اسلام لښکر په تبوک کې شل ورځې تېرې کړې. له دې امله چې دښمن جګړې ته حاضر نه شو، اسلامي لښکر بېرته مدینې ته بریالی ستون شو.

## حجةالوداع

د لسم هجري کال د ذوالقعدة الحرام په ۲۵ مې نیټې د دوشنبې په ورځ د ماسپښین تر لمانځه وروسته د حج د مراسمو د اداکولو په موخه حضرت محمد ﷺ له اصحابو سره، چې شمېر یې له سل زره تنو څخه ډېر وه، د مکې مکرمې په لور روان شو. ددغه سفر لومړۍ شپه یې په ذوالحلیفه کې تېره کړه. د ورځې یې احرامونه وتړل. له اتو ورځو سفر وروسته مکې مکرمې ته ورسېدل. د الله تعالی د کور

طواف او د صفا او مروه مراسم یې پای ته ورسول او د مکې په لوړه، حجون ته نژدې ځای په ځای شول او د ذوالحجې په اتمه ورځ یې منا ته سفر پیل کړ.

شپه یې هلته تېره کړه او د ذوالحجې په نهمه ورځ له لمر ختلو وروسته د عرفات په لور روان شول.

په دغه ځای کې حضرت رسول الله ﷺ داسې هر اړخیزه او ارزښتناکه وینا وکړه چې مؤرخین یې ترټولو غوره نړیوال او اسلامي اساسي قانون بولي. ددغې وینا ځینې مهم ټکي په لاندې ډول دي:

- اې خلکو خبرې واورئ او له هغو څخه اطاعت وکړئ. ښایي په دې بریالی نشم چې راتلونکی کال له تاسو سره و اوسم.

- د یو بل د مال خوړل او د وینې تویول پرتاسو حرام دي

- د جاهلیت د مهال ټولې چارې منع دي

- د ښځو په اړه له خدای ﷻ څخه ووېرېږئ. ښځې پرتاسو او تاسو په ښځو حقونه لرئ

- هغه څه چې ما تاسوته پرېښي، که پر هغو منګولې ولګوئ هیڅ وخت به ګمراه نشئ او هغه د الله تعالی له کتاب او زما د سنتو څخه عبارت دي

- یوازې او یوازې د یوه الله تعالی عبادت وکړئ. پنځه وخته لمونځ وکړئ. روژه ونیسئ او په خوښۍ سره د خپلو مالونو ذکات ورکړئ. د بیت الله حج وکړئ او د او لوالامر اطاعت وکړئ او جنت ته داخل شئ.

- زما په اړه به له تاسو څخه پوښتنه وشي او ستاسو ځواب به زما په اړه څه وي؟ اصحابو وویل: موږ ګواهي ورکوو چې تاسو موږ ته الهي احکام راورسول، زموږ خیر مو وغوښته، هغه مو ولټاوه او حق مو ادا کړ.

بیایې وفرمایل:

(( اې زما پاکه خدایه! تاسو شاهد و اوسئ))

په لسمه ورځ یې په مناکې د یوې وینا په لړکې وفرمایل: (( آیا ما د الله تعالی احکام تاسو ته ورسول؟))

اصحابو وویل: هو: حضرت رسول اکرم ﷺ وفرمایل:

((اې لویه خدایه شاهد ووسئ))

او بیا یې زیاته کړه: ((حاضر خلك دې دغه خبرې غایبو خلکو ته ورسوي.))د ذوالحجې په ۱۳ نېټه یې له منا څخه بیت الله ته تشریف راوړ او له طواف او خدای پامانۍ وروسته د مدینې لور ته روان شو.

# د حضرت رسول اکرم ﷺ رحلت

حضرت نبي کریم ﷺ له حجة الوداع څخه مدینې منورې ته له راستنېدو څه مهال وروسته د سرخوږي په ناروغۍ اخته شو. له لږ رغېدو وروسته، په داسې حال کې چې مبارک سر یې تړلی و، جومات ته یې تشریف راوړ. لومړی یې د احد د شهیدانو په حق کې د خیر او مغفرت دعا وکړه. سپارښتنه یې وکړه چې د انصارو درناوی کوئ او د هغو د ښېګڼو یادونه یې وکړه بیایې و فرمایل: ((خدای عزوجل له خپلو بنده ګانو څخه یو بنده وټاکه چې له دنیا او اخرت څخه یو غوره کړي. هغه اخرت غوره کړ. ددې خبرې په اورېدو سره حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه وژړل او ویې ویل: خپل مور او پلار له تا څخه قربانوم.)) خلکو د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په حالت تعجب وکړ چې هغه ولې ژاړي او داسې خبرې کوي، خو د حضرت محمد ﷺ



نبوي جومات

له رحلت وروسته د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خبرو فهم او زړه نرمي خلکوته څرګنده شوه چې د حضرت محمد ﷺ د خبرو مفهوم یې په چټکۍ سره درک کړی و. حضرت نبي کریم ﷺ وویل:

((اې ابوبکره آرام اوسه.)) حضرت محمد ﷺ خپلو خبروته ادامه ورکړه او ویې فرمایل:

((د ابوبکر له دروازې څخه پرته هغه ټولې دروازې دې، چې د مسجد په لور خلاصې وي، وتړل شي)) زیاته یې کړه: ((زه نه پوهیږم چې د ابوبکر د رفاقت په نسبت پرما باندې بل څوک ډېر حق ولري او که ماکولای شوای چې د الله تعالی له بنده ګانو څخه د خلیل په توګه څوک وټاکم. یقیناً دغه شخص به ابوبکر و. خو بیاهم زموږ ترمنځ دوستي او ورورولي ټینګه ده، تر هغه وخته چې موږ ټول د لوی خدای جل جلاله په وړاندې مخکې کېږو.)) همدارنګه یې وویل: ((د خدای لعنت دې پر یهودو او نصاراو وي چې د خپلو پیغمبرانو له قبرونو یې عبادت ځایونه جوړ کړي. زما له قبر څخه بت مه جوړوئ.))

ددې ترڅنګه یې وویل: ((که څوک مې وهلی وي او یا مې بده خبره ورته کړې وي، خپل غچ دې واخلي او که د چا پوروړی یم او پرما حق ولري هغه غوښتلای شي.)) له اصحابو څخه یو تن وویل:

((زه پر تاسو درې درهم پور لرم. حضرت رسول اکرم ﷺ حضرت فضل بن عباس رضي الله عنه ته امر وکړ چې دغه مبلغ ورکړي.))

له رحلت څخه څلور ورځې وړاندې په داسې حال کې چې ناروغي يې زياته شوې وه په جومات کې حاضرينو ته وويل: ((په مناسب وخت کې دې يهود، نصارا او مشرکين له جزيرة العرب څخه وايستل شي.))

نبي کريم ﷺ د پنجشنبې ورځې تر ماښام پورې د مسلمانانو امامت ته ادامه ورکړه، خو و يې نشواى کولاى چې د ماسخوتن د لمانځه لپاره جومات ته لاړ شي. حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته يې امر وکړ چې امامت وکړي. له همدغه ماسخوتن څخه وروسته د حضرت محمد ﷺ تر رحلت پورې حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه د ۱۷ لمونځونو امامت وکړ. حضرت محمد ﷺ له رحلت وړاندې خپل غلامان آزاد کړل، اووه ديناره چې په کور کې يې درلودل، خيرات کړل او خپله جنگي وسله يې مسلمانانو ته وروبښله. حضرت رسول اکرم ﷺ د هجرت په يوولسم کال د ربيع الاول په دولسمې نيټې د دوشنبې ورځې د غرمې پرمهال د (۶۳) کالو په عمر له دې فاني نړۍ سره مخه ښه وکړه.



## په ټولگي کې فعاليت

زده کوونکي دې په درېو ډلو وويشل شي. لومړې ډله دې د مکې د فتحې، دويمه ډله دې د حنين د غزا او دريمه ډله دې د حجة الوداع په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- مکه په کوم کال کې فتح شوه او لامل يې څه و؟

۲- د حنين غزا څرنگه پېښه شوه؟ معلومات ورکړئ

۳- حضرت محمد ﷺ په کوم کال، مياشت او ورځ رحلت وکړ؟



## له ټولگي څخه بهر فعاليت

زده کوونکي دې د حضرت محمد ﷺ د شخصيت په اړه معلومات را غونډ او په ټولگي کې دې وړاندې کړي.

# ابوبکر صدیق رضي الله عنه

په دې لوست کې به د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د نسب، خلافت ته د رسیدو د څرنګوالي او د هغه د خلافت د دورې د مهمو پېښو په اړه معلومات وړاندې شي.

د حضرت ابوبکر صدیق نوم عبدالله او د پلار نوم یې ابو قحافه او د مور نوم یې ام الخیر سلما بنت ضحر و او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له لوري د صدیق او عتیق لقبونه ورکړل شوي وو. له عام الفیل څخه دوه کاله او څو میاشتې وروسته یې نړۍ ته سترګې پرانیستې. نسب یې په شپږم نیکه(جد) کې له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره یو ځای کېږي. شغل یې سوداګري وه. کله چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په پیغمبرۍ مبعوث شو، په نارینه وو کې لومړنی کس و چې د اسلام په دین مشرف شو. هغه د اسلام او د فی سبیل الله جهاد په لاره کې خپله ټوله شتمني قربان کړه. د تبوک د غزا لپاره د تیارۍ پر مهال یې د خپل کور ټول مالونه نبوي جومات ته راوړل او څه یې چې درلودل هغه یې له اسلام څخه قربان کړل. د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له رحلت وروسته انصار په سقیفه بني ساعده کې را غونډ شول او غوښتل یې چې حضرت سعد بن عباده رضي الله عنه د خلیفه په توګه وټاکي. د دې خبرې په اورېدو سره حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر رضي الله عنهما د سقیفې په لور روان شول. په لاره کې ورسره حضرت عبیده بن جراح رضي الله عنه هم ملګری شو. څنګه چې سقیفې ته ورسېدل، حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د یوې وینا په وړاندې کولو انصار په دې قانع کړل چې د خلافت له دعوې څخه لاس واخلي. حضرت عمر رضي الله عنه له حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه سره د خلیفه او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د ځای ناستي په توګه بیعت وکړ. له هغه وروسته ټولو له حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه سره بیعت وکړ. په دې ډول د خلافت مسئله په ښه توګه حل شوه. د دغې ورځې په سبا حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په نبوي جومات کې د یوې ارزښتناکې وینا له لارې خپله کړنلاره مسلمانانو ته ابلاغ کړه او ویې ویل: ((اې خلکو، زه پر تاسې خلیفه شوم، په داسې حال کې چې زه له تاسو غوره نه یم، که چېرې مې ښه کارونه کول، ما

سره مرسته وکړئ او که مې بدکار کاوه منع مې کړئ. ستاسو ځواکمن زما په وړاندې کمزوری او ستاسو کمزوری زما په وړاندې ځواکمن دی، تر څو د هغه حق له ځواکمن څخه واخلم او ورته یې وسپارم. هغه قوم چې جهاد و نه کړي الله تعالی دغه قوم ذلیلوي. او په هغه قوم کې چې بد کاري دود شي له بلاوو سره مخامخ کېږي)).

د پیغمبر ﷺ له رحلت سره یو شمېر افرادو، لکه مسلیمه کذاب، طلیحه اسدي او نورو د نبوت دعوای وکړه او ځینو خلکو بیت المال ته د زکات له ورکولو ډډه وکړه. حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه اسلامي لښکر ته دنده ورکړه چې د دروغجنو پیغمبرانو او د هغو خلکو، چې د زکات ورکولو څخه یې ډډه کړې او هغه ځوک چې مرتد شوي، کار یوې خوا ته کړي. دغو جګړو له یوه کال څخه ډېر دوام وکړ. تر هغه چې مسلیمه کذاب او ټول مرتدین د خپلو اعمالو په سزا ورسېدل. مرتدین ووژل شول او هغه چا چې زکات نه ورکاوه اصلاح شول او زکات یې قبول کړ.

حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د اسلام د مبارک دین د خپرولو په موخه د حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه په مشرۍ اسلامي لښکر شام ته ولېږه او هغه هم بریالی له خپلې دندې راستون شو. د دغو جګړو په لړ کې د قران کریم ګڼ شمېر حافظان په شهادت ورسېدل. هماغه و چې د حضرت عمر رضي الله عنه په وړاندیز حضرت ابو بکر صدیق رضي الله عنه امر وکړ قران کریم چې د پیغمبر ﷺ په مهال په جلاجلا ډول لیکل شوی و او د اصحابو په واسطه په سینو کې خوندي شوی و په یوه مصحف کې را غونډ کړي. وروسته له هغه چې د هېواد کورنی حالت سم شو، حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه یې د څلو زره کسیز لښکر په مشرۍ عراق ته ولېږه. هغه په یو کال او دوه میاشتو کې د فرات د سیند د سېمې وګړي د اسلام په دین مشرف کړل.

په داسې حال کې چې مسلمانان په برياوو بوخت وو، رومیانو له وخت څخه ګټه واخیسته او ۲۴۰ زره کسیز لښکر یې راغونډ کړ چې له مسلمانانو سره وجنګیږي. حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د

هغوی د دفعې په موخه حضرت عمرو بن عاص(رض) فلسطين ته، حضرت ابو عبيده بن جراح رضي الله عنه حمص ته، حضرت يزيد ابن ابي سفيان رضي الله عنه يې دمشق ته او حضرت شرحبيل بن حسنه رضي الله عنه يې اردن ته ولېږل او حضرت سيف الله خالد بن وليد رضي الله عنه ته يې امر وکړ چې عراق مثنی بن حارث ته پرېږدي او خپله شام ته لاړ شي. په دې وخت کې د حضرت خالد رضي الله عنه د عسکرو شمېر شپږ دېرش زره تنو ته رسېده. په هغه جگړه کې چې د هجرت په ديارلسم کال د يرموك د سيند په غاړه پېښه شوه، دښمن له تاريخي ماتې سره مخامخ شو او ۱۳۰زره تنه يې په قتل ورسېدل. په داسې حال کې چې د مسلمانانو له لوري يوازې درې زره تنه په شهادت ورسېدل او هر قل(هراکليوس) نهيلی او له شام څخه وتښتېده. په دغه جگړه کې د ټولو عسکري ځواکونو اعلی قوماندان حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه و. هغه خپل لښکر په ۳۸ برخو ووېشه او په يوه وخت يې په دښمن له درېو خواوو يرغل وکړ. دغه تاکتيک دښمن دومره حيران کړ چې خپلې ټولې طرحې يې له ياده ووتې او د زمان له زغملو پرته يې هيڅ کار له واکه پوره نه و.

د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د خلافت يوه بله مهمه پېښه داوه چې د حضرت عمر رضي الله عنه په مشوره يې يو شمېر کار پوهان د زيد بن ثابت په مشرۍ مکلف کړل چې قران کريم راغونډ کړي. دغه کار د دې لامل شو چې مسلمانان د قران کريم په اړه يو موټي پاتې شي.

لومړي خليفه د خپل خلافت د دوو کلونو او درې مياشتو په دوره کې اسلام او مسلمانانو ته داسې خدمتونه اوکړنې تر سره کړې چې د اسلام او نړۍ په تاريخ کې سارى نه لري او اسلامي تاريخ پرې وياړي.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلافت د مهمو کارونو او دویمه ډله دې د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د لومړنۍ خطبې په اړه بحث وکړي او خپل معلومات دې په ټولګي کې وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه څنګه خلافت ته ورسېد؟

۲- حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه څو کاله خلافت وکړ؟

۳- د حضرت خالد بن ولید رضي الله عنه د مهمو کارونو نومونه واخلئ.



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د خپلې سیمې له پوهانو او علماوو څخه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# حضرت عمر فاروق رضي الله عنه

په دې لوست کې به د حضرت عمر رضي الله عنه د نسب، شخصيت، برياوو او د هغه د خلافت د لاسته راوړنو په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

د اسلام د دويم خليفه اصلي نوم، عمر بن خطاب او د فاروق او عادل په نومونو ملقب دی. د عام الفيل په ديارلسم کال د قريشو په يوې ښاغلي کورنۍ کې نړۍ ته راغی. په نهم نيکه کې يې د نسب لړۍ حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته رسيږي.

د بعثت په شپږم کال د اسلام په مبارك دين مشرف شو. کله يې چې اسلام راوړ خپل مسلمانېدل يې په ښکاره اعلان کړل او هم يې د هجرت پر مهال په ښکاره اعلان وکړ چې هجرت کوي او وواييل ! که څوك ورسره حساب لري او يا غواړي چې زوی يې يتيم او ميرمن يې بې خاونده شي، زما پسې دې راشي. حضرت عمر رضي الله عنه له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره په ټولو غزواتو کې ګډون کړی او له حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره يې له هيڅ ډول مرستې څخه ځان نه دی سپمولی.

لومړي خليفه به په ټولو کارونو کې له هغه څخه مشوره اخيستله. کله چې لومړی خليفه ناروغ شو. له اصحابو سره له مشورې وروسته يې حضرت عمر رضي الله عنه د خپل ځای ناستي په توګه وټاکه چې د انصارو او مهاجرينو له لوري تاييد شو. حضرت عثمان رضي الله عنه د هغه په اړه وويل:

((حضرت عمر رضي الله عنه سخت ګيره دی، خو زموږ په منځ کې د خلافت لپاره ور بل څوك شتون نه لري.))

**فتوحات**: د مسلمانانو د دويم خليفه د خلافت دوره يوه روښانه او له برياوو ډکه دوره وه. د نظم، انصاف او عدل له مخې د اسلام په تاريخ کې ساری نه لري. هغه برياوې چې د اميرالمومنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت په لس کلنه دوره کې تر لاسه شوې، د امويانو او عباسيانو د دورې له ټولو برياوو سره برابرې دي. د حضرت عمر رضي الله عنه فتوحات په ختيځ کې تر ترکستان او خراسان، په لويديځ کې تر ليبيا، په سوېل کې تر سوډان او په شمال کې د شام او تور سمندرګي تر وروستيو پولو پورې رسېدل. حضرت عمر رضي الله عنه د نهاوند او قادسيې د جګړو په پايله کې د فارس امپراتوري له منځه يووړه او د فارس ( اوسني ايران ) خلك يې په اسلام مشرف کړل.

د قادسيې په جګړه کې د مسلمانانو غازيانو شمېر دېرش زره تنه او قوماندان يې حضرت سعد بن وقاص رضي الله عنه و. په داسې حال کې چې د فارس د لښکر شمېر ۱۵۰۰۰۰ تنو ته رسېده. دغه جګړه

په ۱۴ هجري کال کې پېښه شوه. د فارسي لښکر قوماندان رستم نومېده. هغه د تېښتې پر مهال خپل ځان په اوبو کې وغورځاوه، خو د هلال بن علقمه د توري په ګذار سره ووژل شو. دحضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت پر مهال د بصرې او کوفې ښارونه ودان او ډېره پراختیایي تر لاسه کړه. پلونه جوړ شول، کانالونه او نهرونه وایستل شول، منظمې عسکري قشلې رامنځته شوې، بیت المال منظم شو او اسلامي امارت د هر ولایت لپاره والي وټاکه. اداري نظام منظم شو، اداري او نظامي تشکیلات، مالي دفترونه او ځینې نورې اداري جوړې شوې. قاضیان وټاکل شول. د خراج نظام په فعالیت پیل وکړ. له زړو، ښځو او کوچنیانو څخه خراج نه اخیستل کېده. د صحابه کرامو په مشورې د حضرت عمر رضي الله عنه په خلافت کې د هجرت تاریخ د مسلمانانو د تاریخ د مبداء په توګه وټاکل شو. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه له لس کلونو او پنځو میاشتو خلافت وروسته د ۲۳ هجري کال د ذوالحجه په ۲۷ نېټه د مجوسي ابو لؤلؤ له لوري په شهادت ورسېد. د هغه د خلافت دوره د بریاوو، نظم، عدل، انصاف، برابرۍ، سوکالۍ او د ژوندانه د آسانتیاوو د تامین له پلوه د اسلام په تاریخ کې یوه روښانه دوره ده.

## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د اسلام په خپرېدو کې د حضرت عمر رضي الله عنه د دولت د رول او دویمه ډله دې د حضرت عمر رضي الله عنه د عدل په اړه بحث وکړي.

## پوښتنې

۱- حضرت عمر فاروق رضي الله عنه څه وخت د اسلام په مبارک دین مشرف شو؟

۲- حضرت عمر رضي الله عنه څنګه خلافت ته ورسېد؟

۳- حضرت عمر رضي الله عنه څه وخت او د چاله لوري په شهادت ورسېد؟

## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې له کتابونو او همدارنګه د دیني علماوو په مرسته د حضرت عمر رضي الله عنه د ژوند او د هغه د عدالت په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# حضرت عثمان رضي الله عنه

په دې لوست کې به د حضرت عثمان رضي الله عنه د نسب، شخصيت، خلافت ته د رسېدو د څرنګوالي، برياوو او د هغه د خلافت د مهال د پرمختګونو په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

د دريم خليفه نوم عثمان بن عفان او لقب يې ذوالنورين و. په پنځم نيکه کې يې نسب حضرت رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ته رسېده. له عام الفيل څخه پنځه کاله وروسته په مکه کې په يوې درنې کورنۍ کې نړۍ ته راغی. د ځوانۍ له وخته په سوداګرۍ بوخت و. د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په دعوت سره د اسلام په دين مشرف شو. حضرت عثمان رضي الله عنه يو نرم خويه، حليم او پرهېزګاره شخص و. د اسلام د دين د پراختيا په لاره کې يې د خپلې شخصي شتمنۍ لويه برخه صدقه کړه. د بدر له غزا پرته په ټولو غزاګانو کې له پيغمبر صلى الله عليه وسلم سره ملګری و. د وحې کاتب و. کله چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د ابو لؤلؤ له لوري ټپي شو، مخکې له دې چې له بدن څخه يې روح جدا شي، د خليفه د ټاکنې په موخه يې اووه تنه لوی صحابه، هر يو حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه، علي بن ابي طالب رضي الله عنه، طلحه بن عبيدالله، زبير بن عوام رضي الله عنه، سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه، عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه او عبدالله بن عمر رضي الله عنه وټاکل او زياته يې کړه چې عبدالله بن عمر د رای حق لري، خو د ځان د کانديد ولو حق نه لري. له درې ورځو خبرو اترو وروسته په پای کې د رايو په اکثريت سره حضرت عثمان رضي الله عنه د مسلمانانو د خليفه په توګه وټاکل شو او ټولو ورسره بيعت وکړ.

د حضرت عثمان د دورې برياوې دوه برخې لري. لومړی د هغو سيمو خلک چې د حضرت عمر رضي الله عنه له شهادت وروسته يې بغاوت کړی و، لکه ری، همدان، سکندريه او اذربايجان بېرته د اسلامي حکومت تر ولکې لاندې راغلل. دويم د قبرس او ترکيې سيمې کله چې حضرت معاويه رضي الله عنه د شام والي و، د اسلامي حکومت په ولکه کې راغلې. همدا رنګه په افريقا کې هم يو شمېر سيمې د مسلمانانو لاسته ورغلې. حضرت عثمان رضي الله عنه د خپل خلافت پر مهال سمندري ځواک رامنځته کړ او قران کريم چې د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په وخت کې راغونډ شوی و د

مصحف په ډول ولیکل شو او فتحه شویو سیمو ته ولیږل شو. حضرت عثمان رضي الله عنه د دولس کلونو خلافت وروسته په ۳۶ هجري کال د بلواګرو له خوا په داسې حال کې، چې د قران کریم په تلاوت بوخت و، په شهادت ورسېد.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د حضرت عثمان رضي الله عنه د ژوندانه او دویمه ډله دې د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت د فتوحاتو معلومات په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- حضرت عثمان رضي الله عنه څنګه د خلیفه په توګه وټاکل شو؟

۲- د حضرت عثمان رضي الله عنه په خلافت کې کومې سیمې ونیول شوې؟

۳- حضرت عثمان رضي الله عنه څه وخت او څنګه په شهادت ورسېد؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د حضرت عثمان رضي الله عنه د ژوندانه په اړه معلومات تر لاسه کړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# حضرت علي رضي الله عنه

په دې لوست کې به د حضرت علي کرم الله وجهه د نسب، شخصیت او د خلافت د مهمو پېښو په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

حضرت علي رضي الله عنه د ابوطالب زوی او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د تره زوی او زوم و. لقب یې اسدالله او حیدر و او د ابوالحسن او ابوتراب په کنیت هم مشهور و. له هجرت څخه ۲۱ کاله وړاندې په مکه کې وزېږید. لس کلن و چې د اسلام په مبارك دین مشرف شو. هغه د اسلام په لار کې له هیڅ ډول سرښندنې څخه ځان ونه سپماوه. د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د هجرت په شپه د هغه په بستره کې ویده شو، تر څو هغه کفار چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم کور یې کلابند کړی و، غافله شي او ډاډ من شي چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم چېرته نه دی تللی او په خپله بستره کې ویده دی. حضرت علي رضي الله عنه د علم او پوهې باب و او د وروروولۍ په تړون کې په خپله حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هغه ته د ورورۍ لاس ورکړ.

د حضرت عثمان رضي الله عنه له شهادت وروسته په دویمه ورځ په مدینې منورې کې ورسره خلکو بیعت وکړ او هغه یې د امیرالمومنین په توګه وټاکه. د هغه په خلافت کې حضرت معاویه رضي الله عنه هم نظره او تینګار یې کاوه چې د حضرت عثمان رضي الله عنه د قاتلینو قصاص باید دفعتاً واخیستل شي، خو حضرت علي رضي الله عنه استدلال کاوه چې د حکومت د داخلي وضعې تر ښه کېدو پورې باید انتظار وایستل شي، چې په پایله کې یې د حضرت علي رضي الله عنه پلویان او د حضرت عثمان رضي الله عنه د قصاص پلویان بصرې ته نژدې د جګړې لپاره تیار شول. د جګړې له پېښیدو وړاندې د حضرت قعقاع رضي الله عنه په منځګړتوب نژدې و چې د دواړو لوریو تر منځ سوله ټینګه شي، خو د عبدالله بن سبا، یهودي منافق په لمسون په شپه کې جګړه پیل شوه. د حضرت طلحه او زبیر رضي الله عنهما په شمول چې عشره مبشره صحابه وو، ګڼ شمېر صحابه شهیدان شول او جګړه د حضرت علي رضي الله عنه په ګټه پای ته ورسېده. حضرت ام المومنین عایشه رضي الله عنها چې په اوښ سپره وه و نیول شوه او له ورور سره یې په ډېر احترام د حضرت علي رضي الله عنه په امر مدینې منورې ته ولېږل شوه.

## د صفین جګړه

دغه جګړه د حضرت علي رضي الله عنه او حضرت معاویه رضي الله عنه تر منځ په ۳۷ هجری کال کې د صفین په سیمه کې پېښه شوه. حضرت علي رضي الله عنه له پنځو کلونو خلافت وروسته په ۴۰ هجري کال د روژې

په ۱۹ نېټه د خوارجو د فکر د یوه تن پیرو، عبدالرحمن بن ملجم په واسطه د سهار د لمانځه په موخه جومات ته د تګ په حال کې ټپي شو چې په پای کې د همدې ټپ له امله دوه ورځې وروسته د روژې په ۲۱ نېټه په شهادت ورسېد. هغه د خلافت چارې د عدالت انصاف او په خلکو باندې په شفقت او مهربانۍ سره مخ ته وړلې.

د حضرت علي رضي الله عنه له شهادت وروسته د هغه زوی حضرت حسن رضي الله عنه د خلیفه په توګه وټاکل شو. هغه له خبرو او څېړنو وروسته دې پایلې ته ورسېد چې باید د ځان او مال او د مسلمانانو د یووالي د ساتلو په موخه له حضرت معاویه رضي الله عنه سره له دښمنۍ او سیالۍ لاس واخلي او د خلافت له دعوای څخه تېر شي. دا کار د دې لامل شو چې حضرت معاویه رضي الله عنه سره اړیکه ټینګه کړي او د هغه په ګټه له خلافت څخه تېر شو. له یویل سره یې توافق وکړ. چې باید هغه له ځان څخه وروسته د خلافت چارې په خپله مسلمانانو ته پرېږدي، تر څو په خپلواکه توګه خپل خلیفه وټاکي. په دې ډول توافق وشو او خلافت اموي کورنۍ ته انتقال شو.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوه ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې خلافت ته د حضرت علي رضي الله عنه د رسېدو د څرنګوالي او دویمه ډله دې د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت د پېښو په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- د حضرت علي رضي الله عنه د نسب په اړه په څه پوهېږئ؟

۲- د صفین جګړه د چا تر منځ پېښه شوه؟

۳- حضرت علي کرم الله وجهه په کوم کال او د چا په واسطه په شهادت ورسېد؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د حضرت علي کرم الله وجهه د ژوندانه د ټولو اړخونو په اړه له کتابونو او د خپلې سیمې له علماوو څخه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# خلفاي راشدينو روښانه دورې ته لنډه کتنه

په دې لوست کې به د خلفاي راشدين د سياست د څرنګوالي، لاسته راوړنو او د ټولو بدلونونو او پېښو په اړه معلومات وړاندې شي.

د خلفای راشدینو رضي الله عنهم دوره چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم له رحلت څخه وروسته په ۱۱ هجري کال کې پيل او په ۴۰ هجري کال کې د حضرت علي کرم الله وجهه په شهادت سره پای ته رسېږي، د تاريخي شهکار او د عالم اسلام د وياړ ځرګندونه کوي.

په دغه وخت کې د اسلام خلفاوو هڅه کوله چې د زړې په اندازه د قران کريم له احکامو او اوامرو او نبوي سنتو څخه سر غړونه ونه کړي او په ټول قوت سره پر دغو احکامو ولاړ او عمل پرې وکړي. هغوی د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په څېر له خلکو سره ښه چلن کاوه او هغو ته يې سمه لارښوونه کوله. عدل، انصاف، برابري او وروروولي يې تبليغ، دود، تحکيم او پلي کول.

خلفاي راشدين هغه کسان وو چې ځانونه يې د خدای جل جلاله او خلکو په وړاندې مسؤول او ځواب ورکوونکي ګڼل او هره شېبه حساب ته حاضر او پرته له الله تعالی يې له هيچا څخه ويره نه درلوده. هغوی له خدای جل جلاله او د خلکو د حقونو له ضايع کولو څخه سخت په وېره کې وو. د جزا د ورځې له پوښتنې او ځواب څخه بې پروا نه وو. پرتم او دبدبه يې نه خوښوله. هر چا کولای شول چې په هر وخت او هر ځای کې ورسره ليدنه وکړي. دارالخلافه يې جوماتونه، فرش يې پوزی او مانۍ يې همدا جوماتونه و. په مړه ګېډه يې ډوډۍ نه خوړه.

په کور او د کار په ځای کې يې ساتونکي نه درلودل. هغوی د الله تعالی په لاره کې له قولي او فعلي جهاد څخه يوه ګړۍ نه کښېناستل. د خلکو د يووالي لپاره يې ډېرې هڅې کولې. هغوی چې د صحابه کرامو د مشرانو له لوري ټاکل شوي وو، د خلکو چارې يې د استعداد او تقوی خاوندانو ته يعنی کار يې اهل کار ته سپاره او له هغه څخه يې کلکه څارنه کوله.

د خلفاي راشدينو په دوره کې عسکري، قضايي، مالياتي، پستي، محاسبه يې، تعليمي او روزنيز او د خراج نظام په عامه توګه رامنځته کړای شو.

د خلفاي راشدينو په دوره کې فتوحات له لاندې لاملونو سره تړلي وو:

- په ټولو چارو کې يې له خدای جل جلاله څخه وېره کوله او د الله تعالی رضا ته يې پام کاوه.
- يووالی، پاک نفسي، ايمانداري او په جهاد کې رښتينی خدمت د هغوی د برياليتوب لامل ګڼل کېده.

- عزت او د دنیا او اخرت بریالیتوب یې په اسلام باندې په درېدو کې لیده.
- مسلمانان په دې باور جنگېدل که چېرې له کفارو سره په جگړه کې ووژل شي شهید او که ژوندی پاتې شي غازیان کېږي.
- مسلمانانو د نیول شویو هېوادونو له وگړو سره ډېر ښه او د ورورۍ چلند کاوه.
- دا یې عقیده وه چې اجل نه بدلېږي، نو ځکه ډاډه جنگېدل.
- پر خدای ﷻ تکیه او توکل هم د فتوحاتو یو لامل و.
- مشورې او د رازونو ساتنې ته یې ډیر پام کاوه.
- یوې قوماندې او د اولوالامر اطاعت ته یې غاړه ایښوده.
- صبر یې درلود.
- له لوږې، تندې او هر ډول ستونزو سره یې مقاومت کاوه.

د خلفاې راشدینو دا ډول صفات د دې لامل وگرځېد چې د اسلام مبارك دین د نړۍ تر لرو سیمو پورې خپور شي او د نړۍ ډېر وگړي پرې مشرف شي.



## په ټولگي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې دخلفاې راشدینو د شخصي احوالو او دویمه ډله دې د هغوی د خلافت د کړنلارو په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- راشدینو خلفاوو په خپل رسمي او شخصي ژوند کې له څه ډول کړنلارې څخه پیروي کوله؟

۲- د خلفاې راشدینو په دوره کې د اسلامي فتوحاتو د لاملونو په اړه خپل معلومات وړاندې کړئ.



## له ټولگي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د خپلې سیمې د دیني علماوو څخه د خلفاې راشدینو د ژوندانه او کړنلارو په اړه معلومات راغونډ اوپه ټولگي کې دې وړاندې کړي.

# امویان

## ۴۱ – ۱۳۲هـ ۶۶۱– ۷۵۰م

په دې لوست کې به د حضرت معاویهؓ، مشهورو اموي خلفاوو، د امویانو د فتوحاتو او د عاشورا د حماسې په اړه معلومات وړاندې شي.

د دې کورنۍ بنسټ ایښودونکی حضرت معاویهؓ دی. له دې کورنۍ څخه ۱۴ تنو واکمني کړې چې لومړنی یې حضرت معاویهؓ او وروستنی یې مروان دی. په دې دوره کې د اسلامي فتوحاتو لمن په لویدیځ کې تر هسپانیې او فرانسې او په ختیځ کې تر ترکستان، چین او هند پورې ورسېده.

### حضرت معاویهؓ

حضرت معاویهؓ د ابوسفیانؓ زوی او د حرب لمسی دی. له هجرت څخه پنځلس کاله وړاندې په مکه کې زېږېدلی دی پلار یې ابوسفیان د قریشو له مشرانو څخه و.

د مکې د فتحې په ورځ له ټولې کورنۍ سره د اسلام په دین مشرف شو. حضرت معاویهؓ د وحې له کاتبانو څخه هم و او د حضرت محمدؐ له لوري د وحې د کتابت دنده ورسپارل شوې وه.

د حضرت عثمانؓ په خلافت کې د شام والي و. کله چې حضرت عليؓ په شهادت ورسېد او حضرت امام حسنؓ د خلافت لپاره وټاکل شو د څو میاشتو له تېرېدو وروسته له حضرت معاویهؓ سره، چې د شام والي و، په دې موافقې ورسېد چې حضرت معاویهؓ نشي کولای له ځان وروسته څوک د ځای ناستي په توګه وټاکي، بلکې دغه کار باید مسلمانانو ته پرېږدي.

په دې ترتیب حضرت معاویهؓ د ټول اسلامي هېواد امیر شو او حضرت امام حسنؓ له خلافت څخه لاس واخیست. حضرت معاویهؓ دمشق د خپلې پلازمینې په توګه وټاکه. بني هاشمو ته یې ډېر درناوی درلود. هغه په لوېدیځ کې مراکش او المغرب، په شمال کې ترکیه او په ختیځ کې سیستان او خراسان فتح کړل.

د قوي سمندري ځواك په رامنځته کېدو کې یې ډېرې هڅې وکړې او په دې لاره کې یې بریاوې هم تر لاسه کړې. حضرت معاویهؓ په ۶۱ هـ کال کې وفات شو.

## یزید

### ۶۱- ۶۴ هـ ۶۸۱- ۶۸۴ م

یزید په ۲۵ هـ کال کې زیږیدلی او په ۶۱ هجري کال کې د پلار حضرت معاویه رضي الله عنه له وفات وروسته واک ته ورسېد. د هغه د واکمنۍ پر مهال د کربلا حماسه پېښه شوه چې په لړ کې یې حضرت امام حسین رضي الله عنه له ۷۲ تنو یارانو سره په شهادت ورسېد. یزید په ۶۴ هـ کال کې وفات شو.

## عبدالملک بن مروان

### ۶۵- ۸۶ هـ ۶۸۵- ۷۰۵ م

د یزید له مړینې وروسته د هغه زوی دویم معاویه واک ته ورسېد، خو واکمنۍ یې له ۴۰ ورځو ډېر دوام ونه کړ او په ځای یې مروان بن حکم د چارو واک تر لاسه کړ. هغه ژمنه وکړه چې د چارو واک به د دویم معاویه زوی خالد ته وسپاري، خو چې کله یې قدرت تر لاسه کړ، د خالد له مور سره یې نکاح وکړه او د خالد په ځای یې خپل زامن عبدالملک او عبدالعزیز یو په بل پسې ځای ناستي وټاکل.

د مروان له مړینې وروسته عبدالملک واک ته ورسېد. هغه بصره، کوفه او هغه ټولې سیمې چې د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه په لاس کې وې تر خپلې ولکې لاندې راوستې او بیا یې د خوارجو فتنه له منځه یووړه. په ختیځ کې یې د فتوحاتو لمن تر کابل پورې وغځوله. په شمال کې یې قسطنطنیه فتح کړه. عقبه بن نافع چې د افریقې د شمال سیمې یې له لاسه وتلی وې، بیا تر لاسه کړې. عبدالملک بن مروان له ۲۱ کاله واکمنۍ وروسته په ۸۶ هجری کال کې د ۶۳ کالو په عمر وفات شو. نوموړی لومړنی اسلامي واکمن و چې په خپل نوم یې سکه ضرب کړه. په داسې حال کې چې له هغه وړاندې رومي او ساساني سکو دود درلود. د هغه په واکمنۍ کې عربي ژبې په ټولو دولتي ادارو کې رسمیت پیدا کړ.

## عمر بن عبدالعزیز

### ۹۹ – ۱۰۱هـ

په اموي کورنۍ کې حضرت عمر بن عبدالعزیز رضي الله عنه هغه څوک و چې له ډېرې پوهې، تقوی او عدل څخه برخمن و او په هغه یې ډېر شهرت درلود. هغه هڅه کوله چې خلفای راشدین په پله پښه کېږدي. هغه د سلیمان له مړینې وروسته خلافت ته ورسېد. نوموړي د قران او نبوي احادیثو له احکامو

سره سم رفتار کاوه. هغه د عدالت د رعایت له امله په دویم عمر او پنځم راشده خلیفه نومول شوی دی.

حضرت عمر بن عبدالعزیز(رض) د خپلې خلافت په دوره کې د اموي دورې ټول والیان او قاضیان له کاره گوښه کړل او پر ځای یې پرهېزگاره، پاک نفسه، ایمانداره او عادل اشخاص وټاکل. د مالیاتو او خراج په اصولو کې یې بدلونونه راوستل.

له خلکو څخه یې درانده خراج لغوه او هغه یې د خلکو له وړتیا سره سم عیار کړل. له بیت المال او عامه شتمنیو څخه یې د ناوړې گټې اخیستنې مخه ونیوله. له خاینینو، بډې اخیستونکو او مفسدینو سره یې په کلکه مبارزه کوله او له داسې افرادو څخه یې ډېره کرکه درلوده.

د حضرت عمر بن عبدالعزیز رضي الله عنه د ښو کړو وړو له امله، خوارجو او ټولو مخالفینو له دولت سره له مخالفت څخه لاس واخیست. هغه د خلکو د سوکالۍ په موخه روغتونونه، نهرونه، د اوبو بندونه او کانالونه جوړ کړل چې له امله یې ډېرې ځمکې کښت او کرنې ته چمتو شوې او هم یې یوه اندازه ځمکه په مستحقینو ووېشله.

حضرت عمر بن عبدالعزیز رضي الله عنه لومړنی کس و چې رسماً یې د نبوي احادیثو د راټولولو امر وکړ. حضرت عمر بن عبدالعزیز رضي الله عنه له دوو کلو او پنځو میاشتو واکمنۍ وروسته دځینو خاینینو په دسیسه د یوه غلام له لوري په شهادت ورسېد. امویانو نژدې یوه پېړۍ په اسلامي نړۍ واکمنۍ وکړه چې مشهور واکمنان یې په لاندې ډول دي:

۱- معاویه بن ابي سفیان(رض) ۴۰- ۶۰ هـ ق

۲- یزید بن معاویه ۶۰- ۶۴ هـ ق

۳- عبدالملک بن مروان ۶۵ – ۸۶ هـ ق

۴- ولید بن عبدالملک ۸۷- ۹۶ هـ ق

۵- سلیمان بن عبد الملک ۹۷- ۹۹ هـ ق

۶- عمر بن عبدالعزیز(رض) ۹۹- ۱۰۱ هـ ق

۷- دویم یزید بن عبدالملک ۱۰۱- ۱۰۵ هـ ق

۸- هشام بن عبدالملک ۱۰۵- ۱۲۵ هـ ق

۹- ولید بن دویم عبدالملک ۱۲۵– ۱۲۶ هـ ق

۱۰- یزید بن ولید بن دریم عبدالملک ۱۲۶– ۱۲۷ هـ ق

۱۱- مروان، بن محمد ۱۲۷- ۱۳۲ هـ ق

د امویانو حکومت کابو له یوې پېړۍ واکمنۍ وروسته د زوال په لور روان شو. د امویانو وروستی واکمن مروان حران ته نژدې ماته وخوړه او د مصر لورته د تېښتې پر مهال ووژل شو او په دې توګه عباسیان و اک ته ورسیدل او اسلامي تاریخ نوی پړاو پیل کړ.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د اموي کورنۍ د واک ته رسېدو د څرنګوالي او دویمه ډله دې د حضرت معاویه رضي الله عنه د مهمو کارونو په اړه بحث وکړي او تر لاسه شوې معلومات دې په ټولګي کې وړاندې کړي.



## پوښتني

۱- حضرت معاویه رضي الله عنه د چا زوی او د چا لمسی و؟

۲- د حضرت معاویه رضي الله عنه په وخت کې د اسلامي فتوحاتو لمن تر کومو سیمو رسېده؟

۳- کوم اموي خلیفه، د دویم عمر او پنځم راشده خلیفه په نوم نومول شوی و؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د حضرت معاویه رضي الله عنه د خلافت د څرنګوالي په اړه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د امویانو په دوره کې اقتصادي، اداري، کلتوري او پوځي وضعیت

## ٤١- ١٣٢هـ .ق

په دې لوست کې به د اموي دورې د سیاسي، اقتصادي، کلتوري او پوځي مسایلو په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

په اموي دوره کې د اقتصاد له پلوه یو لړ مهم بدلونونه رامنځته شول. د غنیمت، عشر او خمس تر سرلیک لاندې ډېر مالونه له آسیایي او افریقایي نیول شوو هېوادونو څخه پلازمېنې دمشق ته لېږل کېدل. د نیول شویو هېوادونو تر منځ سوداګریزې اړیکې ټینګې شوې وې.

له کلتوري او تمدني پلوه په اموي دوره کې ډېر ښارونه جوړ شول. دغه ښارونه د لوړو برجونو لرونکي وو او په عین حال کې یې د دفاعي کلاګانو بڼه هم درلوده. دمشق چې د امویانو له لوري د پلازمېنې په توګه کارېده، په دغه وخت کې د نړۍ له ښکلو ښارونو څخه شمېرل کېده.

د لومړي ځل لپاره په اموي دوره کې د عبدالمالك په وخت کې سکه ضرب شوه. له هغه وړاندې رومي او ساساني سکو دود درلود. د حضرت عمر بن عبدالعزیز رضي الله عنه په وخت کې شاړې ځمکې تر اوبو لاندې شوې او د کرنې لپاره اماده شوې. د ناروغانو د درملنې لپاره روغتونونه جوړ شول. کرنې ته ډېر پام وشو او د کرنې د پراختیا په موخه نهرونه او د اوبو بندونه جوړ شول.

د امویانو په دوره کې اسلامي تمدن چټکه وده وکړه چې د خیریه موسسو، جوماتونو او د هغو له جملې څخه د دمشق د جامع جومات جوړېدل یې څرګنده بېلګه ده. اسلامي ادبیاتو علومو او فنونو، هنر او صنایعو پراختیا وموندله چې په نړۍ کې د اسلامي نظام د نورو د متمدن کېدلو لپاره یو معیار وګرځېد.

په پوځي برخه کې پوه افراد لکه موسی بن نصیر د عسکري ټولیو د مشرۍ لپاره وټاکل شول. موسی بن نصیر او طارق بن زیاد د افریقا په شمال او د اروپا په سوېل لوېدیځ کې د اسلام لمن تر هسپانیې پورې ورسوله، قطیبه بن مسلم د خپلو فتوحاتو لمن د منځنۍ آسیا تر هېوادونو، ترکستان او کاشغر پورې پراخه کړه او هم یې د چین دربار ته اسلامي پلاوی ولېږه.

محمد بن قاسم په هند کې په دې بریالی شو چې خپل فتوحات تر کراچی او ملتان پورې ورسوي.
مسلمه بن عبدالملك په کوچنۍ آسیا کې د خپلو فتوحاتو سرحد د انطاکیې تر ښاره پورې پراخه کړ.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې په اموي دوره کې د ټولنیزې وضعې او دویمه ډله دې په دې دوره کې د پوځي فعالیتونو په اړه بحث وکړي او په ټولګی کې دې وړاندې کړي.



## پوښتنې

۱- د اسلامي مالیاتو په اړه معلومات ورکړئ.
۲- امویانو کوم ښار د خپل پایتخت په توګه ټاکلی و؟
۳- امویانو د عامه سوکالۍ لپاره کوم کارونه تر سره کړل؟
۴- محمد بن قاسم کومه سیمه تر لاسه کړه؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې په مدني او پوځي برخو کې د امویانو د بریالیتوب د رازونو په اړه له پوهو اشخاصو څخه معلومات تر لاسه او بیا دې په ټولګی کې وړاندې کړي.

# عباسيان

## ۱۳۲- ۶۵۶ هـ/ ۷۵۰- ۱۲۵۸ م

په دې لوست کې به له اموي کورنۍ څخه عباسيانو ته د واک د لېږد د څرنګوالي په اړه معلومات وړاندې شي.

## له امويانو څخه عباسيانو ته د خلافت لېږد

په ۹۶ هـ کال کې د وليد بن عبدالملک له مړينې وروسته اموي حکومت ۳۶ کاله نور هم دوام وکړ، خو وضع يې ښه نه وه. عباسي کورنۍ پټه مبارزه کوله. علويانو هم له وړاندې څخه له امويانو سره کينه درلوده، خو مهمه موضوع چې دغه دښمني يې په ډاګه کړه، د مروان له لورې د امام ابراهيم وژل وو. د هغه قتل د دې لامل شو چې عباسيان خپل مخالفت علني کړي.

ابو مسلم خراساني په ۱۲۹ هـ کې په مرو کې تور بيرغ پورته کړ او اموي حاکم نصر بن سيار يې چې د نيشاپور حاکم و، شاتګ ته اړ کړ او وروسته يې په سل زره کسيز لښکر سره د زاب د سيند په غاړه د مروان ۱۲۰ زره لښکر ته ماتې ورکړه. مروان موصل ته وتښتېد. ابومسلم تور بيرغ په دمشق کې ورپاوه مروان د نيل د سيند په غاړه د عباسي عسکرو له لورې ووژل شو او په دې ډول عباسي کورنۍ واک ته ورسېده.

## ابو العباس سفاح ( ۱۳۲- ۱۳۶ هـ)

د ابوالعباس اصلي نوم عبدالله بن محمد بن عبدالله دی. کله چې مروان ووژل شو، ابوالعباس رسماً خپل ځان خليفه اعلان کړ. هغه خپله لومړنۍ خطبه د جمعې له لمانځه وړاندې خلکو ته واوروله او داسې يې څرګنده کړه چې د مسلمانانو په لاربښوونه او خدمت کې به د خلفاي راشدينو کړنلاره پلې کوي. له دې امله دغې وينا د دمشق د ښار په خلکو اغېزه وکړه. له دې وروسته يې د اموي کورنۍ د غړو په ډله ييزې وژنې پيل وکړ. او د هغو دوينې په تويولو کې يې له شدت څخه کار واخيست چې له امله يې په اسلامي هيواد کې د سفاک په نوم مشهور شو. د هغه د خلافت څلور کلنه دوره د مخالفينو په وژلو سره تېره شوه او په ۱۳۶ هـ کې وفات شو.

## ابو جعفر عبدالله المنصور
## (۱۳۶- ۱۵۸ ق)

د ابوالعباس له مړينې وروسته يې ځای ناستی منصور پر تخت کښېناست. هغه يو هوښيار، پوه او زيرک شخص و. د عباسي خلافت د ټينګښت لپاره يې ډېرې هڅې وکړې. هغه د دولتي چارو په

تنظیم کې هم ډېر بریالی و. د مالیاتو، پوهنې، کرنې او د لارو د جوړېدو په برخه کې یې ډېر زیار وایست.
د هغه د خلافت په دوره کې کومه ناوړه پېښه رامنځته نه شوه. بلکې خلکو په آرامی سره ژوند کاوه.
د دغې دورې د یادونې وړ پېښه د عبدالله بن علي پاڅون و چې هغه هم د منصور له لوري وځپل شو.
منصور د خلافت مرکز له دمشق څخه بغداد ته ولېږداوه.
هغه له ۲۲ کلونو واکمنۍ وروسته په ۱۵۸ هـ کال کې حج ته د تلو پر مهال وفات شو.

## محمد المهدی بن جعفر المنصور
## (۱۵۸ هـ ۱٦۹ هـ ق)

مهدي د پلار له مړینې وروسته واک ته ورسېد. هغه د ښو اخلاقو، ښه سلوک تقوا او تواضع خاوند و.
د هغه له لومړنیو کارونو څخه یو هم زندانیانو ته عمومي بښنه وه. مهدي د مخالفینو ټول ملکیتونه چې د منصور له لوري نیول شوي و، بېرته خپلو خاوندانو ته وسپارل. هغه په مجموع کې ټولو انسانانو سره ښه رویه درلوده. قاضیانو ته یې ډېر درناوی درلود. د هغوی په وړاندې یې د یوه عادي فرد په څېر ودرېده او د هغو د پریکړو پلي کول یې د ځان لپاره یو مکلفیت او جدی مسؤولیت ګاڼه. هغه د بیت الحرام جومات ته پراختیا ورکړه او د عمومي لارو، کاروان سرایونو میلمستونونو او فرعي لارو په جوړېدو کې یې ډېرې هڅې وکړې. په پستي چاروکې یې ډېر خدمتونه وکړل او د مکې، مدینې، یمن او بغداد تر منځ یې منظم پستي سیستم رامنځته کړ. د زندانیانو د کورنیو لپاره یې له بیت المال څخه تنخواه وټاکله. د ژوند په وروستیو ورځوکې یې خپل زامن په ترتیب سره هادي د لومړي او هارون د دویم ځای ناستي په توګه وټاکل. له یو ولس کلونوخلافت وروسته په ۱٦۹ هـ کال کې وفات شو.

## موسی الهادي(۱٦۹- ۱۷۰ هـ ق)

د المهدي له مړینې وروسته موسی الهادي واک ته ورسېد. هغه دغه مهال ۲۴ کلن و. الهادي د دربار د دروازو ساتونکي لرې کړل چې خلک مخامخ ستونزې ورته ووایي. د هغه د خلافت په وخت کې ادریس په مراکش او موریتانیا کې خپلواک دولت اعلان کړ. الهادي له دوو کلونو خلافت وروسته په ۱۷۰ هـ کې وفات شو.

## هارون الرشيد بن مهدی (۱۷۰- ۱۹۳ هـ)

هارون الرشید د پلار له وصیت سره سم د موسی الهادي له مړینې وروسته خلافت ته ورسېد. هغه نه یوازې په عباسي کورنۍ کې، بلکې د اسلام په تاریخ کې یو ستر شخص و. د هغه د هڅو پایله وه چې بغداد، د نړۍ په کچه د علومو په پلازمېنې بدل شو.

هارون الرشید یو مدبر او عالم شخص و. مېرمن یې زبیده هم پوهه، هوښیاره، عالمه او یوه مهربانه ښځه وه. د مکې د خلکو د څښلو د اوبو د ستونزې د هوارولو په موخه دې ته تیاره شوه چې د خپلو شخصي ګاڼو په پلور لو سره له طایف څخه مکې ته د نهر د کېندلو کار په بریا سره پای ته ورسوي. دغه د اوبو ویاله تر نن ورځې د زبیدې د نهر په نامه یادېږي. هارون الرشید په خپلې پوهې او کفایت سره ټول هغه بغاوتونه، چې د خپل ورور هادي په وخت کې منځته راغلي وو، په سوله ییزه توګه آرام کړل. هغه د پوهانو او فضلاوو ډېر احترام کاوه. د هغه په دوره کې علوم او فنون اوج ته رسېدلې وو. هغه ښوونځي، مدرسې، روغتونونه، کاروانسرایونه، پلونه، نهرونه او د اوبو بندونه جوړ کړل. د هغه د وخت یوه مهمه لاسته راوړنه په بغداد کې د ساعت جوړول و. کله یې چې یو ساعت د فرانسې پاچا، شارلمان ته د سوغات په توګه ولېږه، د فرانسې پاچا یې په لیدلو سره په تعجب کې شو. او خپلو وزیرانو ته یې وویل: ((دا مسلمانان عجیب خلک دي. د اوسپنې په یوه قطعې کې یې پیریان بند کړي، چې دغه کوچني شیان یې په حرکت راوستلي او ټک ټک آواز کوي.)) هارون الرشید لومړنی اسلامي شخصیت و چې د چین او فرانسې هېوادونو سره یې اړیکې ټینګې کړې او دغو هېوادونو ته یې سفیران ولېږل او د هغو سفیران یې په بغداد کې ومنل.

نوموړي ۹ ځلې د مکې مکرمې او مدینې منورې زیارت کړی و او له ۲۳ کلونو خلافت وروسته په طوس یا نني مشهد کې وفات شو او هملته خاورو ته وسپارل شو.

## مامون الرشید (۱۹۹- ۲۱۸ هـ)

د هارون الرشید له مړینې وروسته امین خلافت ته ورسېد د هغه ورور مامون چې د مروې د والي په توګه یې دنده تر سره کوله، د امین خلافت ومانه، خو کله چې امین د فضل بن ربیع په لمسون، مامون له ولیعهدۍ څخه لرې کړ، مامون اړ شو چې توري ته لاس کړي. په دې وخت کې د مامون له لوري طاهر فوشنجي چې د افغانستان والي و، د لښکر مشري په غاړه درلوده او د امین له لوري علي بن عیسی د لښکر مشرو. د جګړې به ترځ کې امین ووژل شو او لښکر یې ماتې وخوړه او اسلامي

خلافت رسماً مامون ته ورکړل شو.

مامون الرشید پوهنې ته ډېر پام درلود. په دې دوره کې طب، ریاضیاتو، فلسفې، ادب منطق او نورو علومو ډېره پراختیا وموندله. له ډېرو بهرنیو ژبو په ځانګړې توګه له لاتیني ژبې څخه ډېر آثار وژباړل شول. په مجموع کې هغه کېده چې د خپل تمدني سیر د نظام پر مختګ ته د هارون الرشید د دورې په څېر ادامه ورکړې. وروسته له هغه چې مامون وفات شو او معتصم واک ته ورسېده څنګه چې لازمه وه د هېواد په چارو یې حاکمیت نه درلود. د اندلس او په مصر کې د فاطمیانو د حکومت رامنځته کېدل د بغداد د خلافت لمن محدوده کړه. د اسلامي خلافت په ختیځ لوري کې طاهر فوشنجي، چې د مامون له لوري د خراسان د والي په توګه مقرر شوی و په ۲۰۴ هـ کې د خپلواکۍ اعلان وکړ. په بغداد کې هم اصلي قدرت د ترکانو لاس ته ورغی. د دغې لړۍ وروستی خلیفه مستعصم باالله و چې د چنګیز د لمسي هلاکو په واسطه په بغداد کې ووژل شو او په دې توګه په ۶۵۶هـ کال کې د عباسي کورنۍ حاکمیت پای ته ورسېد.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې واک ته د عباسیانو د رسېدو د څرنګوالي او دویمه ډله دې د هارون الرشید د واکمنۍ په اړه معلومات بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- د عباسي کورنۍ مهم شخصیت څه نوم درلود او د چا له لوري و وژل شو؟
۲- د عباسي کورنۍ وروستی واکمن د چا له خوا ووژل شو؟
۳- د مامون الرشید د خلافت په دوره کې په کومو علمي برخو کې پرمختګونه وشول؟
۴- منصور په کوم کال وفات شو؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د عباسي کورنۍ د تاریخي مخینې او د هغو د خلافت د مهمو کارونو په اړه له پوهانو څخه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د عباسي دورې سياسي، اداري، کلتوري او اقتصادي حالت

په دې لوست کې به د عباسيانو د اداري چارو له څرنګوالي او په عباسي دوره کې د علم او هنر د پرمختګونو د رامنځ ته کېدو په اړه معلومات وړاندې شي.

عباسيانو له لومړي سر څخه داسې څرګندوله چې امويانو د حضرت محمد ﷺ او راشدينو خلفاوو لاره پرېښې وه او دوی د محمدي ﷺ شريعت او راشدينو خلفاوو کړنلاره تعقيبوي. د دغه ډول ادعا يوه بېلګه د ابوالعباس تاريخي وينا ده چې خلافت ته د رسېدو پر مهال يې د جمعې له لمانځه مخکې وکړه.

د ابوالعباس له مړينې وروسته، د جعفر منصور په دوره کې سياست ته ډېر پام وګرځېد. ابو جعفر منصور هغه شخص و چې د وخت له پوهانو څخه يې د سلاکارانو په توګه کار اخيست. د متفکر او هوښيار يزيد بن مسلم مشاوريت د ابو جعفر منصور د سلا کارانو يوه بېلګه ده. د عباسيانو د نظامي سياست يوه ځانګړتيا دا وه چې د پېښې له پېښېدو وړاندې هغې ته متوجه کېدل. که کله يې له کوم تن يا کوم لوري څخه د خطر احساس کاوه، هڅه يې کوله چې سخته ضربه ورکړي او يا تعرضي بريد پرې وکړي د مثال په توګه کله چې ابوجعفر منصور د ابومسلم له لوري د خطر احساس وکړ، د هغه په له منځه وړلو يې لاس پورې کړ او ژوند ته يې د پای ټکی کېښود.

دويمه ځانګړتيا يې د نړيوالو ډيپلوماتيکو اړيکو ټينګول و چې د هغه پر بنسټ د ښه نيت دايمي او موقتي سفيران د نړی هېوادونو ته لېږل کېدل او بر عکس د نورو هېوادونو سفيران په خپل حاکميت کې منل کېدل.

د بېلګې په توګه هغه مهال چې هارون الرشيد د پراخه اسلامي هېواد خليفه و، هغه د نړی له ډېروهېوادونو سره ډيپلوماتيکې اړيکې ټينګې کړې چې د بېلګې په توګه د هند، چين، فرانسې او يونان نومونه يادولی شو.

په دې دوره کې په علمي او کلتوري برخو کې هم ډېر پرمختګ وشو. طبابت ډېره وده وکړه او د ډېرو انساني، حيواني او نباتي ناروغيو لپاره دارو درمل جوړ شول. په بغداد کې د نړی له ډېرو هېوادونو

ښخه پوهان، فیلسوفان، جغرافیه پوهان، نجوم پوهان، ریاضي پوهان، هندسه پوهان، نقاشان، خطاطان، موسیقي پوهان، معماران او د هر فن او مسلك ماهرین راغونډ شوي وو او د عباسي واکمنانو له لوري یې سخت ملاتړ او درناوی کېده او له لوړو امتیازاتو ښخه برخمن وو.

په بغداد کې د هر دین او مذهب خلکو شتون درلود. د هیڅا لپاره، مذهبي، دیني او کلتوري محدودیت نه و. عیسویانو، یهودیانو، مجوسیانو، بت پرستانو، او د بېلابېلو افکارو او عقایدو خلکو په خپلواکۍ سره خپل دیني مراسم تر سره کول او په بېلابېلو برخو کې په خپلو علمي او فني څېړنو بوخت وو.

په دې دوره کې علم، فن او معارف ښه وده وکړه. ډېر علمي او هنري کتابونه چې د نړۍ په بېلابېلو هېوادونو کې په مختلفو ژبو تألیف شوي وو، په عربي ژبه وژباړل شول. مورخینو او جغرافیه پوهانو د معلوماتو د راغونډولو په موخه د نړۍ بېلابېلو سیمو ته سفرونه وکړل او په دې برخه کې یې ډېر زیار وایست. په دې سفرونو کې جغرافیه پوهانو ډېر کشفیات وکړل او مورخینو هم د قدر وړ آثار ولیکل. ادیبانو او د فن خاوندانو د ښوونې او روزنې په دودولو کې له هیڅ راز زحمتونو ښخه ځان ونه سپماوه. په ټولو اسیایي او افریقایي سیمو کې عربي ژبه دود شوه. د الجبر او ریاضیاتو په برخه کې نه هیریدونکي خدمتونه تر سره شول. په عباسي دوره کې د بېړۍ چلولو د فن په موخه د قطب نما کشف او د هغې کارېدل او د جغرافیې د علم لپاره د اسطرالاب له الې ښخه ګټه اخیستنه هغه دوه توکي وو چې په دغو دوو ځانګو کې یې انقلاب رامنځته کړ. ځکه چې قطب نما د بېړیو په سفر او سیر کې آسانتیا رامنځته کړه او اسطرالاب د ستورو لرې والی او نژدې والی ښرګنداوه. دغه اله د اغریق په نامه یوه شخص اختراع کړه. همدارنګه د دغه زرین عصر مسلمانان د ساعت جوړولو، کاغذ جوړولو او باروت جوړولو په برخه کې د اروپایانو استادان وو. مورخین په دې باور دي چې اروپایانو ځینې علوم، لکه: هندسه، نجوم، ریاضي او ډېر نور فنون او هنرونه له مسلمانانو ښخه زده کړي دي.

هغه پر مختګونه چې په عباسي دوره کې د علومو په مختلفو برخو لکه: کیمیا، الجبر او جیولوژي کې رامنځته شول، د هغه عصر مهمې لاسته راوړنې ګڼل کېدې. په دې دوره کې د مالګې، سربو،

گوګړو، اوسپنې او قیمتي ډبرو د کانونو استخراج په منظمه توګه پیل شو.

په عباسي دوره کې پر بغداد سربېره، د بصرې، کوفې، قاهرې، قیروان، مروې، ری، بخارا او نشاپور ښارونو د علم، فن او هنر له پلوه د نړۍ په کچه لوړ مقام تر لاسه کړ چې د نړۍ له بېلابېلو سیمو به خلک د علم، هنر، بیلابېلو مهارتونو او دکسب کار د زده کولو لپاره دغو سیمو ته راتلل او د هغو له مادي او معنوي فضایلو او ښکلاوو څخه به یې خوند اخیسته او علم او فضایل یې تر لاسه کاوه.

عباسیانو د انساني مدنیت د هر اړخیز پرمختګ لپاره ډېر کارونه تر سره کړل چې ځانګړې ارزښت لري او اسلامي تمدن او تاریخ پرې تل ویاړي. په دې دوره کې د جګړه ییزو وسایلو جوړولو او عسکري دسپلین ته هم پوره پام کېده. نو ویلی شو چې عباسیانو په پوځي برخه کې هم د پام وړ بریاوې درلودې.



## په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د عباسیانو د کلتوري وضعې او دویمه ډله دې د دغې دورې د پوځي کړنو په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- د هغو ښارونو نومونه واخلئ چې په عباسي دوره کې د نړۍ د تمدن مرکزونه ګڼل کېدل.

۲- د کوم عباسي خلیفه په وخت کې د الجبر او ریاضي په برخه کې ستر بریالیتوبونه رامنځته شول؟

۳- په عباسي دوره کې د نړۍ په کچه د ډیپلوماسۍ په برخه کې څرنګه نوښتونه رامنځته شول؟



## له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده کوونکي دې د عباسیانو په اړه له سر چینو څخه معلومات تر لاسه او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.